Scanned by CamScanner

معنوي دی، نو څه وجه ده، چې تاسو (ماتصنع) یوازي له (ماشأنک) سره خاص کړ؟
ددې جواب دادی، چې په لومړنیو مثالونو کې خو داسې قرینې وي، چې پر فعل یې دلالت کاوه، ځکه چې په دغو دواړو کې جار مجرور وو او جارمجرو د ځان لپاره متعلق ضرور غواړي، نو د دوی د متعلق غوښتل پر مقدر فعل دلالت کوي، په خلاف د اخیري مثال، چې په دې کې داسې شی نسته، چې ددوو فعلونو پر موجودګۍ دلالت وکړي.
**فائده:** انشاء الله تعالیٰ تاسو به په جامي کې وواياست، چې د مفعول معه په عامل کې د نحوي د علماؤ څو اقوال دي، لکه چې لومړی قول د شیخ عبدالقادر رحمة الله علیه دی، چې (واو) په معنا د (مع) پخپله په مفعول معه کې عامل دی.
دوهم قول د امام اخفش رحمة الله علیه دی، هغه وایې، چې عامل خو مخکنی فعل وی، لېکن هغه په مفعول معه کې عمل نه کوي، بلکه هغه په (واو) بمعنی (مع) کې عمل کوي، لېکن د عمل ظهور په اسم کې نسي کېدای، بلکې په وروسته اسم یعنی مفعول معه کی کېدای سي، ځکه د عمل ظهور په اسم کې کېږي، چې د (الا) اعراب پر وروستني اسم یعنی مستثنیٰ راځي.
اودریم قول د نحوي د جمهورو علماؤ رحمهم الله دی، هغوی وایې، چې په مفعول معه کې عامل هماغه مخکنی فعل دی، لېکن په واسطه د (واو) په معنا د (مع) دی.

## یواویایم (۷۱) درس
## د شپږم منصوب (حال بیان)

الحال ما یبین هیئة الفاعل اوالمفعول به لفظًا او معنًی، نحو: ضربتُ زیدًا قائمًا و زیدٌ فی الدار قائمًا وهذا زیدٌ قائمًا وعاملها الفعل او شبهه او معناه.
**ترجمه:** حال هغه اسم د، کوم چې د فاعل، یا مفعول به حالت بیانوي، هغه فاعل، یا مفعول که لفظي وي، یا معنوي، لکه: (ضربتُ زیدًا قائمًا، وزیدًا قائمًا

وزیدٌ فی الدار قائمًا وهذا زیدٌ قائمًا) او د ده فعل یا خو فعل وي، یا شبه فعل، یا معنا د فعل.

**تشریح**: د نن په سبقه کي درې خبرې دي:

①: د حال تعریف سره د قیدونو له فائدو، ②: د مثالونو وضاحت، ③: د حال د عامل تفصیل.

**لومړۍ خبره**: د حال تعریف سره د قیدونو له فائدو:

د مفاعیل خمسه له بیانولو وروسته مصنف رحمه الله اوس د مفاعیلو د ملحقاتو بیان کوي او ملحقات ټول اووه دي: ①: حال، ②: تمییز، ③: مستثنیٰ، ④: خبر کان واخواتها، ⑤: اسم دان واخواتها، ⑥: اسم د لائ نفی جنس، (۷): خبر د ماولا مشابه بلیس.

په دوی کي تر ټولو مخکي د حال بیان کوي، چي (الحال) تر ده مخکي (ومنها) جار مجرور خبر مقدم مقدر دی او (الحال) دده لپاره مبتدأ مؤخره ده، د (منها) ضمیر د (منصوبات) طرفته هم راجع کېدای سي، په دې صورت کي معنا داسي کېږي، چي له منصوباتو څخه شپږم منصوب حال دی او که مقدر (ملحقات) را وایستل سي، د هغه وطرفته هم راجع کېدای سي، بیا معنا داسي کېږي، چي له ملحقاتو څخه لومړی حال دی.

د حال تعریف یې داسي بیان کړی دی : (الحال ما یبین هیئة الفاعل اوالمفعول به لفظًا او معنًی)، یعني حال هغه اسم دی، چي د فاعل، یا مفعول حال بیانوي، هغه فاعل او مفعول که په لفظ کي مذکوروي، یا مقدر وي.

په عبارت کي (لفظًا او معنًی) دا دواړه له (الفاعل او المفعول به) څخه تمییز واقع کېږي، له همدې وجې دواړه منصوب دي.

دوهمه خبره د مثالونو وضاحت:

د حال تر تعریف وروسته مصنف رحمه الله د حال لپاره درې مثالونه وړاندي کړی دي:

**لومړی مثال**:

ضربتُ زيدًا قائمًا، دلته (قائمًا) د (ضربتُ) له ضمير فاعل ځخه، يا له (زيدًا) مفعول به ځخه حال واقع سوی دی او دا دواړه په لفظ کي مذکور دي، په عبارت کی د تقدير را ايستلو ته کوم ضرورت نسته.

**دوهم مثال:**

زيدٌ فی الدار قائمًا: دا د فاعل معنوي مثال دی، ځکه دلته (قائمًا) له (زيدٌ) ځخه حال واقع سوی دی او (زيدٌ) په لفظي ډول فاعل خو نه دی، بلکي په لفظي توګه هغه مبتداء واقع سوی دی، هوکې! په معنوي توګه هغه فاعل جوړېدای سي، ځکه دلته موږ (کانَ) فعل، يا (کائنٌ) صيغه داسم فاعل مقدره کړه، چي په دواړو کي دننه (هو) ضمير فاعل دی، چي همدغه (زيدٌ) ته راجع دی، نو ګواکي چي دا فاعل معنوي سو، د عبارت تقدير داسي کېږي: (زيدٌ حاصلٌ فی الدار قائمًا، يا زيدٌ حصلَ فی الدار قائمًا).

**درېيم مثال:**

هذا زيدٌ قائمًا: دا دمفعول معنوي مثال دی، ځکه چي د دغه تقديري عبارت داسي جوړېږي (اشير الیٰ زيدٍ قائمًا) دلته (قائمًا) له (زيدٌ) ځخه حال واقع سوی دی او په معنوي ډول مفعول به دی.

د انصاف خبره داده، چي د کافيه ملاصاحب رحمه الله چي د حال کوم تعريف بيان کړی دی، پکي ځه تکلفات سته، لکه چي په اخيري دوو مثالونو کي تاسو ته اندازه وسوه، حال دا چي د ده په مقابله کي جمهورو کوم تعريف بيان کړی، هغه بلکل بيله ګرځ وغباره تعريف دی، په دې کي د (لفظًا او معنًی) قيدونو لګولو ته هم ضرورت نسته او مذکوره مثالونه هم په فوري توګه په پوهه کي راځي، د دوی په نزد د حال تعريف دادی، چي حال هغه اسم يا جمله ده، کوم چي له فاعل، مفعول، مبتداء، خبر او جار مجرور ځخه د يوه حالت بيانوي.

اوس د مذکوره تعريف په مخکي ښودلو سره مثالونو ته غوږ سئ: په (ضربتُ زيدًا قائمًا) کي د فاعل يا مفعول حالت بيان سوی دی، په (زيدٌ فی الدار قائمًا) کي

د مبتداء حالت بيان سوی دی او په (هذا زيدٌ قائمًا) کې د خبر حالت بيان سوی دی
والله اعلم بالصواب.

## د قيدونو فائدې:

په پورته عبارت کې له (الحال) معرّف او (ما) څخه تر (لفظًا او معنًى) پوري ټوټل عبارت د حال تعريف دی، بيا يې په تعريف کې (ما) جنس ده، په کوم کې چې ټول منصوبات شامل دي، لېکن په (هيئة) لومړی فصل سره تمييز ووت، ځکه چې تمييز د يو شی هيئت (ډول) نه، بلکې دده ذات بيانوي، لکه (عندی عشرون درهمًا)، دلته (درهمًا) د (عشرون) د ذات بيانولو لپاره راوړل سوی دی، تردې وروسته يې په (الفاعل او المفعول به) دوهم فصل لګولو سره باقي منصوبات هم ووتل.

## درېيمه خبره: د حال د عامل تفصيل:

و عاملها الفعل اوشبهه او معناه: مصنف رحمة الله عليه په دې عبارت کې د حال د عامل درې صورتونه بيانوي:

## لومړی صورت:

عاملها الفعل: چې يا خو د حال عامل فعل لفظي وي، لکه چې په مخکې مثال (ضربتُ زيدًا قائمًا) کې تېر سوه، په دې کې چې کوم (ضربتُ) فعل لفظي دی، په (قائمًا) حال کې يې عمل کړی دی.

## دوهم صورت:

**او شبهه:** يا د ده عامل د شبه فعل په شکل وي، لکه چې په دوهم مثال (زيدٌ في الدار قائمًا) کې تېر سوه، دا په اصل کې (زيدٌ کائنٌ في الدار قائمًا) و، نو (کائنٌ) کوم چې شبه فعل دی، په (قائمًا) حال کې يې عمل کړی دی.

يادونه: شبه فعل شپږو شيانو ته ويل کېږي: ①: اسم فاعل، ②: اسم مفعول، ③: صفت مشبه، ④: اسم تفضيل، ⑤: مصدر، ⑥: اسم فعل.

## درېيم صورت:

او معناه: چي د حال عامل به یا د فعل معنوي په شکل وي، لکه چي په دریم مثال (هذا زیدٌ قائمًا) کي تېر سوه، په دې جمله کي په لفظي توګه فعل خو هېڅ نسته، خو له (هذا) اسم اشاره څخه موږ په معنوي ډول (اشیر) فعل را وایست، همدغه معنوي فعل په (قائمًا) حال کي عمل کړی دی.

**دوه اویایم (۷۲) درس د حال لپاره ضروري قاعده**

و شرطها ان تکون نکرةً وصاحبها معرفة غالبًا و ارسلها العراکَ و مررت به وحده ونحوه متأولٌ، فان کان صاحبها نکرةً وجبَ تقدیمها.

**ترجمه**: او د حال شرط دادی، چي نکره به وي او ذوالحال به په اکثري توګه معرفه وي د (ارسلهاالعراک ومررت به وحده) په څېر په مثالونو کي تاویل سوی دی او که چېرې ذوالحال نکره وي، نو دده پر حال مخکي کول واجب دي.

**تشریح**: د نن په سبقه کي درې خبرې دي:

①: د حال لپاره یوه ضروري قاعده، ②: پر یاده سوې قاعده سوال او دهغه جواب، ③: د حال پر ذوالحال مخکي کېدل.

**لومړۍ خبره**: د حال لپاره یوه ضروري قاعده:

و شرطها ان تکون نکرةً: دلته د حال او ذوالحال لپاره د تعریف او تنکېر په اعتبار یوه قاعده بیانېږي، قاعده داده، چي حال به تل نکره وی او ذوالحال به اکثره وختونه معرفه وي او کله کله نکره هم راځي، چي پوره تفصیل به یې وروسته راسي.

د حال لپاره د نکره کېدو شرط ځکه لګول سوی، چي په حالت نصبی کي د ده له صفت سره التباس لازم نسي، مثلاً که چېري دا شرط ونه لګول سي، او داسي وویل سي چي (ضربتُ زیدًاالقائم) نو دا نه معلومېږي، چي (القائم) د (زید) لپاره صفت دی، که حال، خو کله چي د نحوي علماؤ د ده لپاره د نکره کېدو شرط ولګاوه، نو التباس یې له هیڅچا سره نه راځي او ددواړو تر مینځ فرق بلکل واضح سو، دا راز د (ضربتُ زیدًا قائمًا) په خپل مینځ کي حال او ذوالحال کېږي، حال دا چي (ضربتُ زیدًا القائمَ) موصوف او صفت دي.

دوهمه وجه داده، چي د اسم لپاره په معرفه او نکره کي اصل دده نکره کېدل دي، دلته ضرورت د اصل نکره په ذريعه پوره کېږي او په ښه طريقه سره پوره کېږي، نو فرع (معرفه) ته کوم ضرورت نه پاتېږي.

درېيمه وجه داده، چي د حال له خبر سره مشابهت سته، ځکه لکه څرنګه چي خبر محکوم به وي، دا راز حال هم محکوم به وي او د محکوم به لپاره اصل دادی، چي هغه نکره وي او د ذوالحال لپاره معرفه کېدل شرط دي، ځکه چي دا د مبتداء په څېر محکوم عليه وي او محکوم عليه خو معرفه وي، نو ذوالحال به هم معرفه وي.

و ارسلهاالعراکَ ومررت به وحده: په دې سره د يوه سوال جواب ورکوي، سوال دادی، چي اوس تاسو قاعده بيان کړه، چي حال همېشه نکره وي او درې دلېلونه مو هم ورباندي ووېل، حال دا چي لبيد بن ربيعه رضي الله عنه کوم چي يو صحابي دی او فصيح او بليغ عرب دی، بلکي په عربي ژبه کي د لوړې کچې شاعرهم دی، ده يو شعرويلی دی:

و ارسلها العراکَ و لم يزدها* و لم يشفق على تغض الدّخال

**ترجمه:** هغه وحشي خره ماده خرو ته د اوبو څښلو لپاره لاره خوشي کړه، په داسي حال کي چي د دوی ازدحام (ګڼه ګوڼه) وه او ونه توانېدی چي له ازدحام جوړولو يې را وګرزوي او نه پر دې ووېرېد چي د ازدحام له کبله به تږې پاتې سي.

**د مذکوره شعر تحقيق:**

مشهور صحابي لبيدبن ربيعه رضي الله عنه يو ځل د تفريح (سيال) په توګه د غره خواته تللی و، هلته يې وليدل، چي د غره په لمن کي پر يوه چينه څه خرې له نورو عامو خرو سره وليدل، چي د اوبو څښلو لپاره را ورسېدل، او يو خريې پر لوړ ځای ولاړ وليد، چي له حاله يې څرګندېدل، چي ددوی د حفاظت لپاره ولاړ دی، يعني که چېري کوم ښکاري وغيره راسي، نو دی هغه نور خبروي، لبيد بن ربيعه رضي الله عنه چي دا حيرانوونکی منظر وليد، نو يې پورتنی شعر وواية:

و ارسلها العراکَ و لم يزدها* و لم يشفق على تغض الدّخال

**د استشهاد ځای:** وګوره! په مذکوره شعر کي (العراک) د (ارسلها) له (هاء) ضمیر څخه حال واقع سوی دی، خو سره له دې چي حال دی او معرفه هم دی، دا راز په (مررت به وحده) کي (وحده) د (به) له ضمیر څخه له حال واقع کېدو سره، سره د اسم ضمیر و طرفته دمضاف کېدو په وجه معرفه دی، نو د بې ادبۍ بخښنه غواړم، چي ستاسو قاعده صحیح نه ده، یا دا مثالونه غلط دي؟
د دې سوال په جواب ورکولو د کافیه ملاصاحب د دریاب په کوزه کي د ځایولو په ډول په یوه کلمه سوال کوونکی چوب کړی دی، چي (متأولٌ) یعني جنابه! دا دواړه هم او ددوی په څېر هر هغه کلمه چي حال وي، خو په ظاهره هغه معرفه وي، نو په هغې کې تاویل سوی دی، د تأویل تفصیل ته غوږ سه!
امام ابوعلي صاحب وایې، چي جنابه! موږ قاعده د حال او ذولحال لپاره وړاندي کړې ده او تا سوال د مفعول مطلق د مثال په ذریعه پر کړی دی، دا کوم انصاف دی؟، ځکه تا چي کوم مثال وړاندي کړی دی، د دې له حال او ذوالحال سره هیڅ تړاو نسته، بلکي په لومړي مثال کي (العراکَ) د (تعترکُ) فعل مقدر لپاره مفعول مطلق جوړېږي او په دوهم مثال کي (وحده)، د (ینفرد) لپاره مفعول مطلق من غیر لفظه دی، نو که چېري ته زما پر قاعدي سوال کوي، نو د حال او ذوالحال مثال وړاندي کړه، بیا سوال پر وکړه.
امام سیبویه رحمه الله وایې: جنابه! (العراک او وحده) که څه هم لفظًا معرفه دي، خو په حقیقت کي دا دواړه نکره دي، ځکه چي (العراک) د (معترکةً) په معنا دی او (وحده) د (منفردة) په معنا دی او (معترکة او منفردة) دواړه نکره دي، اوس نو هغه چي ستاسو جواب دی، هغه زموږ جواب دی.

## د حال پر ذوالحال مخکي کېدل

**درېیمه خبره:** د حال پر ذوالحال مخکي کېدل:
فان کان صاحبها نکرة وجب تقدیمها: په دې عبارت کي د مذکوره قاعدې پاته برخه پوره کوی، هغه دا سي لکه څرنګه چي موږ قاعده بیان کړه چي ذوالحال اکثره وخت معرفه وی او کله، کله نکره هم واقع کېږي، اوس نو که چېري ذوالحال نکره واقع سوی وی، نو هلته حال پر ذوالحال مخکې کول واجب دي،

ولې که چېرې حال او ذولحال پر خپل ترتیب پاته سي، نو د نصب په حال کې به له صفت سره د التباس خرابي لازمېږي، مثلاً که یو څوک ووایې: (ضربتُ رجلاً مجرّدًا عن ثیابه)، نو د متکلم نیت که څه هم دادی، چې (مجرّدًا) له (رجلا) څخه حال واقع سوی دی، خو کتونکی او اورېدونکی دده په نیت خبر نه دی، بلکې هغه خو ظاهري الفاظو ته ګوری او په ظاهر کې لکه څرنګه چې (مجرّدًا) د (رجلا) لپاره حال واقع کېدای سي، دا راز دده لپاره صفت هم واقع کېدای سي او غالبًا همداسي وي، نو په حالت نصبي کې د قاعدې له مخې حال مقدم کېږي او په حالت رفعي کې که څه هم د التباس وېره نسته، خو طردًا للباب هلته هم حال مخکې کېږي.

نو لکه څرنګه چې د نکره محضه په صورت کې د تخصیص پیداکېدو لپاره د خبر مخکې کېدل واجب وي، دا راز په ذوالحال کې د تخصیص پیداکېدو لپاره د حال مخکې کول واجب دي، لکه چې مشهور اصول دی (التقدیم ماحقه التأخیر یفید الحصر والاختصاص).

## دروا اویایم (۷۳) درس

## د حال پر ذوالحال د مخکې کېدو دوه صورتونه

و لا یتقدم علی العامل المعنوي بخلاف الظرف و لا علی المجرور علی الاصحّ و کل مادلّ علیٰ هیئةٍ صحّ ان یقع حالاً، مثل: هذا بسرًا اطیب منه رُطبًا.

**ترجمه**: او نه مخکې کېږي حال پر عامل معنوي، په خلاف د ظرف او نه پر هغه ذوالحال چې په حرف جر سره مجرور وي د صحیح قول پر بنا او د هر هغه اسم کوم چې پر یو هیئت (ډول) دلالت کوي حال واقع کېدل صحیح دي، لکه (هذا بسرًا اطیب منه رُطبًا).

**تشریح**: د نن په سبقه کې څلور خبرې دي:

①: د حال د تقدیم د عدم جواز لومړی صورت، ②: له مذکوره حال څخه یو استثنائي صورت، ③: د حال دتقدیم د عدم جواز دوهم صورت، ④: د کافیه د ملاصاحب پر جمهورو علماؤ رد.

**لومړۍ خبره:** د حال د تقديم د عدم جواز لومړى صورت:

ولا يتقدم على العامل المعنوي: له دې ځايه تر (على الاصح) عبارت پوري د حال د تقديم د عدم جواز دوه صورتونه او د جواز يو استثنائي صورت بيانېږي: لومړى صورت دادى، چي حال پر خپل عامل معنوي نسي مخکي کېداى، ځکه چي عامل معنوي يو ضعيف عامل دى، په خپل مابعد کي خو عمل کولاى سي، لېکن په ماقبل کي يې نسي کولاى، لکه چي دا ويل جائز دي (هذا زيدٌ قائمًا)، لېکن (هذا) اسم اشاره کوم چي عامل معنوي ده، پر ده که چېري حال (قائمًا) مخکي کړل سي، (قائمًا هذا زيدٌ) وويل سي، نو جائز نه دى.

لېکن چيري چي د التباس خطره وي، نو هلته يي تقديم جائز دى، لکه (زيدٌ قائمًا کعمرو قاعدا) دلته (کاف تشبيه) کوم چي عامل معنوي دى پر ده (قائمًا) مخکي سوى دى، ځکه که چېري مخکي نسي او (زيدٌ کعمرو قائمًا قاعدًا) وويل سي، نو التباس پيداکېږي، نه معلومېږي، چي په دوى کي کوم اسم د کوم اسم لپاره حال جوړېږي.

**دوهمه خبره:** له مذکوره حالت څخه يو استثنائي (وتلى) صورت:

بخلاف الظرف: په دې سره د جواز يو استثنائي صورت بيانېږي، چي که چېري د حال عامل ظرف و، نو ظرف که څه هم عامل معنوي دى، لېکن پر ده حالِ مخکي کېداى سي، ځکه چي قاعده ده، چي (يسع فى الظرف ما لا يسع فى غيره لکثرة وروده فى الکلام) يعني په ظرف کي د ډېر واقع کېدو له کبله د هغو شيانو فراخي ده، کومه چي په بل شي کي نسته، لېکن دا خبره په ياد لره، چي پر ظرف د حال مخکي کېدل يو اتفاقي مسئله نه ده، بلکي پکي د امام سيبويه او امام اخفش رحمهما الله اختلاف دى.

امام سيبويه رحمة الله عليه وايي: چي ظرف عامل معنوي دى او پورته دا خبره تېره سوه، چي عامل معنوي يو کمزورى عامل دى، نو پر ده حال نسي مخکي کېداى، لکه چي (زيدٌ قائمًا فى الدار) ويل ناجائز دي.

او امام اخفش رحمة الله عليه وايي، چي که چېري تر حال مخکي مبتداء وه، نو بيا د حال مخکي کېدل جائز دي، لکه (زيدٌ قائمًا فى الدار) د دې تقديري عبارت داسي

دي: (زیدٌ ثبت فی الدار قائمًا) په دې صورت کې (قائمًا) د (ثبت) له ضمیر
فاعل څخه حال واقع سوی دی، کوم د (زیدٌ) وطرفته راجع دی او تر حال مخکې
د مبتداء شرط ځکه لګول سوی، چې له وجې یې ظرف قوی سي، ځکه هغه
پخپله ضعیف عامل دی.

دوهمه وجه، کومه چې تر لومړی زیاته قوي ده، هغه داچې که چېرې پر ظرف
مقدم سي، لېکن تر دغه حال مخکې مبتداء وي، نو هلته خو داسي مو وېلای
سو، چې حال پر ظرف مقدم دی، لېکن داسي نسو وېلای، چې من کل الوجوه پر
ده مقدم دی، ځکه چې همدا ظرف د مبتداء مذکور لپاره خبر جوړېږي او د خبر
رتبه دا وي، چې هغه له مبتداء سره متصل (نښتی) وي، او دلته که څه هم لفظًا
حال پر ظرف مخکې دی، لېکن رتبةً مقدم نه دی، بلکي رتبه خو د حال تر خبر
وروسته ده او د عامل ضعیف عمل په خپل ماقبل کې هغه مهال مانع وي، کله
چې هغه من کل الوجوه یعنی لفظًا و رتبةً په دواړو اعتبارو سره مؤخر وي، لکه
(قائمًا زیدٌ فی الدار، یا قائمًا فی الدار زیدٌ) دا په اتفاق د امام سیبویه او امام
اخفش رحمهماالله ناجائز دی، امام سیبویه خو هماغه وجه وایي، چې ظرف
عامل ضعیف دی او د امام اخفش رحمه الله په نزد ځکه چې په دې صورت کې
ظرف من کل الوجوه مؤخر دی.

### د تقدیم حال د عدم جواز دوهم صورت

**درېیمه خبره:** د تقدیم حال د عدم جواز دوهم صورت:

**و لا علی المجرور علی الاصح:** دوهم صورت چېرې چې د حال پر ذوالحال مقدم
کول ناجائز دي، دادی، که چېرې ذوالحال مجرور وي، هغه که په حرف جر سره
وي، که په اضافة سره وي، په دواړو صورتونو کې له صحیح قول سره سم د حال
پر ذوالحال مخکې کېدل ناجائز دي، وجه یې داده، چې دلته د حال د مخکې
کېدو دوه صورتونه دي، یو دا چې پر جار او مجرور دواړو مخکې سي، مثلًا د
(مررت برجلٍ راکبًا) پر ځای (مررت راکبًا برجلٍ) وویل سي، دا ځکه ناجائز دی،
لکه څرنګه چې د مجرور پر حرف جر مخکې کېدل ناجائز دي، دا راز د مجرور تابع
هم پر حرف جر مخکې کېدل ناجائز دي.

او دوهم صورت دادى، چي حال صرف پر ذوالحال مجرور مقدم سي او حرف جر تر ده مخكي وي، لكه د (مررت برجلٍ راكبًا) پر ځاى (مررت براكبًا رجلٍ) دا هم ځكه ناجائز دى، چي په داسي صورت كي د حرف جر او مجرور تر مينځ فاصله لازمېږي، چي له كبله يې مجرور منفصل جوړېږي، او موږ په نحومېر كي داخبره كړې ده، چي حروف جاره كمزورى قسم عامل دي، له دوى سره مجرور متصل خو راتلاى سي، لېكن منفصل نسي راتلاى.

په همدې طريقه سره كه چېري ذوالحال بالمضاف مجرور وي، نو هلته هم حال نسي پر مخكي كېداى، ځكه چي هلته هم د حال دمخكي كېدو دوه صورتونه دي:

يو دا چي حال پر مضاف او مضاف اليه دواړو مخكي كړل سي، لكه چي د (جاءتنى ضاربة زيد مجرّدًا عن الثياب) پر ځاى (جاءتنى مجردًا عن الثياب ضاربة زيد) وويل سي.

د دې د عدم جواز وجه هماغه ده، كومه چي بيان سوه، چي حال د ذوالحال تابع وي او متبوع دلته مضاف اليه واقع سوى دى، نو لكه څرنګه چي پخپله د مضاف اليه پر مضاف مخكي كېدل ناجائز دي، دا راز پر ده دده دتابع مقدم كېدل هم جائز نه دي، نو (مجردًا عن الثياب) كوم چي له (زيدٌ) څخه حال واقع سوى دى، نو لكه څرنګه چي د (زيدٌ) پر (ضاربةٌ) مخكي كېدل ناجائز دي، دا راز د (مجردًا عن الثياب) پر (زيدٌ) مخكي كېدل هم ناجائز دي.

او د تقديم دوهم صورت دادى، چي حال صرف پر ذوالحال يعني پر مضاف اليه مخكي كړل سي او مضاف پر خپل ځاى وي، نو دا هم ځكه ناجائز دى، چي د مضاف او مضاف اليه ترمينځ فصل (بېلون) لازمېږي، لكه چي د (جاءتنى ضاربة زيد مجرّدًا عن الثياب) پر ځاى (جاءتنى ضاربة مجردًا عن الثياب زيدٍ) وويل سي.

د كوفي دځيني علماؤ په نزد كه چېري ذوالحال د حرف جر په ذريعه مجرور وي، نوحال پر مخكي كېداى سي، دوى دلېل د قرآنكريم دا مبارك آيت وايې: (و ما

ارسلناک الا کافة للناس بشیرًا ونذیرًا)، دلته (کافة) له (للناس) مجرور څخه حال واقع سوی دی او پر مخکې سوی دی.
جمهورو علماؤ د دې دوه جوابونه ورکړي دي:
یو دا چې (کافةً) بېشکه حال دی، لیکن له (للناس) څخه نه دی، بلکې د (ارسلناک) له ضمیر خطاب څخه حال دی او هغه پر مخکې دی، نو کوم سوال پاته نسو.
دوهم دا چې (کافةً) حال نه دی، بلکې مصدر دی صفت یې محذوف دی، اصل عبارت داسې دي: (وما ارسلناک الا رسالةً کافةً للناس)، نو په دې صورت کې هم کوم سوال نه پاتېږي (کما فی تقریر الکافیة).
**څلورمه خبره:** د کافیه د ملاصاحب رحمه الله علیه پر جمهورو علماؤ رد:
و کل مادلّ علیٰ هیئة صحّ ان یقع حالًا: په دې عبارت سره د کافیه ملاصاحب رحمه الله علیه پر جمهورو علماؤ رد کوي، ځکه هغوی د حال لپاره د اسم مشتق شرط لګولی دی او کوم اسم چې غیر مشتق وي، هغه د مشتق په تأویل اړوي.
د کافیه ملاصاحب رحمه الله علیه وایې: چې دا راز شرط لګول صحیح نه دی، بلکې هر هغه اسم چې پر یو حالت دلالت کوي، د هغه حال واقع کېدل صحیح دی، هغه که اسم مشتق وي، یا نه وي، لکه (هذا بسرًا اطیب منه رطبًا) غور وکړئ! دلته (بسرًا) او (رُطبًا) دواړه له دې سره، سره چې اسم جامد دي، خو حال واقع سوي دي، ځکه (بسر) هغه نیمه پخې خورما ته وایې، چې پکې لږ غوندې تریو والی پاته وي، نو ګواکې چې پر نیمه پختیا یې دلالت وکړ، او (رطب) هغه پخې خورما ته وایې، چې پکې خوږوالی وي، تریو والی بلکل پکې نه وي، نو ګواکې چې پر پوختیا یې دلالت وکړ، نو د یو شی پوخوالی، یا نیمه پوخوالی دواړه حالتونه دي او پر دغو حالتونو (رطبًا او بسرًا) دلالت کوي، سره له دې چې دا دواړه اسم جامد دي، نو د مصنف رحمه الله علیه تر وړاندې کړې قاعده (وکل ما دل علی هیئة...الخ) لاندې دا دواړه حال واقع کېدل صحیح سو.
د (هذا) اسم اشاره مشارالیه (تمرٌ) ده، تر دې وروسته (بسرًا) د (اطیبُ) له ضمیر مستتر یعنی (هو) څخه حال واقع سوی دی او (رطبًا) له (منه) ضمیر

مجرور څخه حال واقع سوی دی او په دغو دواړو ذوالحال کي (اطيب) د اسم تفضيل صيغه عامل ده، لومړی په (هو) ضمير کي، ځکه چي هغه يې فاعل دی او دوهم د (منه) په ضمير کي، ځکه چي هغه مفعول به دی او قاعده ده، چي د ذوالحال عامل په حال کي هم عمل کوي، يعنی د دواړو عامل يو وي، نو په (بسرًا او رطبًا) کي هم همدا (اطيب) صيغه داسم تفضيل عامل سوه، همدا د امام سيبويه او د نحوي د محققينو علماؤ قول دی.

دلته يو سوال واقع کېږي، چي جنابه! مخکي موږ دا قاعده بيان کړې وه، چي (ولا يتقدم على العامل المعنوي) او وجه موږ دا ښودلې وه، چي عامل معنوي ضعيف وي، په مابعد کي خو عمل کولای سي، لېکن په ماقبل کي يې نسي کولای، نو اسم تفضيل خو هم يو ضعيف عامل دی، نو دلته هم د حال تقديم جائز کېدل نه دي پکار؟

د دې جواب دادی: چي جناب محترمه! هغه قاعده بلکل يوه منل سوې قاعده ده، خو له هغې څخه دا صورت مستثناء دی، ځکه چي د دغه اسم تفضيل لپاره هم يوه مستقله قاعده د ه، چي يو شی که چېري په مختلفو اعتباراتو سره حال جوړ سوی وي، نو د هر حال له خپل ذوالحال سره متصل کېدل ضروري دي، په مذکوره مثال کي په مختلف اعتبار سره له يوه مشاراليه (خورما) څخه دوه حاله واقع سوي دي، ځکه چي مشاراليه مفضل ده، نو په دې اعتبار يې (بسرًا) حال ده او مفضل عليه هم ده، نو په دې اعبتار سره يې (رطبًا) حال ده، نو (بسرًا) له (هذا) سره او (رطبًا) له (منه) ضمير مجرور سره متصل پاته سو، نو په لازمی دول (بسرًا) پر (اطيب) مخکي کړل سو.

## څلور اويايم (۷۴) درس

## د حال جمله خبريه کېدل او پکي د رابطې صورتونه

و قد تكون جملةً خبريةً، فالاسمية بالواو والضمير او بالواو او بالضمير على ضعفٍ والمضارع المثبت بالضمير وحده وماسواهما بالواو والضمير اوباحدهما.

**ترجمه**: او كله كله حال جمله خبريه هم وي، نو كه چېرې جمله اسميه حال واقع سوي وي، نو رابطه يې په واو او ضمير دواړو سره، يا يوازې په واو، يا يوازې په ضمير سره كېږي، لېكن دا ضعيف دی او كله چې مضارع مثبت حال واقع سي، نو رابطه يوازې په ضمير سره كېږي او له دې دواړو (يعنی جمله اسميه او مضارع) پرته رابطه په واو او ضمير دواړو سره، يا په دوی كې په يوه سره كېږي.

**تشريح**: د نن په سبقه كې څلور خبرې دي:

①: د حال د جمله خبريه په شكل راتلل، ②: د جمله اسميه په صورت كې د رابطې صورتونه، ③: د مضارع مثبت په صورت كې د رابطې صورتونه، ④: له دغو دواړو په ماسوی كې د رابطې صورتونه.

### د حال د جمله خبريه په شكل راتلل

**لومړۍ خبره**: د حال د جمله خبريه په شكل راتلل:

و قد تكون جملةً خبريةً: مصنف رحمه الله عليه د حال مفرده له بيان څخه فارغ سو، اوس د حال مركبه بيان كوي، نو وايې: چې (وقد تكون جملة خبرية) يعني د حال اصلي او ډېر استعمالېدونكی صورت خو دادی، چې مفرد وي، لېكن كله كله د جمله په شكل هم راځي، لېكن خلاف الاصل او قليل الاستعمال والا صورت همدا دی، چې حال د جمله په شكل وي، نو دا راز حال هم د جمله په شكل راتلای سي. او دوهمه وجه دا هم ده، لكه څرنګه چې مفرد كلمه پر يو كيفيت دلالت كوي، دا راز جمله هم پر يوه كيفيت دلالت كوي او مخكې موږ دا قاعده بيان كړې وه، چې (وكل مادلّ علی هيئة صحّ ان يقع حالاً).

ياد لرئ! چې د كافيه ملاصاحب رحمه الله عليه له (جملةٌ) سره (خبرية) قيد لګولی دی، په دې سره ګواكي چې جمله انشائيه ايستل غواړي، ځكه چې حال په منزله د خبر او صفت وي، نو لكه څرنګه چې خبر او صفت د جمله انشائيه په شكل نسي راتلای، نو دا راز حال هم د جمله انشائيه په شكل نسي راتلای.

بيا جمله خبريه عامه ده، كه اسميه وي، كه فعليه، دواړې حال واقع كېږي، د اسميه مثال (جاءنی زيدٌ وغلامه راكبٌ) په دې كې (وغلامه راكبٌ) پوره جمله اسميه له (زيدٌ) فاعل څخه حال واقع سوې ده او د جمله فعليه مثال (جاءنی زيدٌ

ویرکب غلامه) په دې کي (ویرکب غلامه) پوره جمله فعلیه له (زیدٌ) فاعل څخه حال واقع سوې ده.

**دوهمه خبره:** په جمله اسمیه کي د رابطې صورتونه:

فالاسمیة بالواو.... کله چي دا خبره ثابته سوه، چي حال د جمله په شکل راتلای سي، نو د حال د جمله په شکل د راتلو پنځه احتمالات دي:

①: حال د جمله اسمیه په صورت، ②: حال د جمله فعلیه په شکل، او فعل ماضي مثبته وي، ③: حال د جمله فعلیه په شکل او فعل ماضي منفي وي، ④: حال جمله فعلیه وي او فعل مضارع مثبته وي، همدا صورت د کافیه ملاصاحب رحمة الله علیه ذکر کړی دی، ⑤: حال د جمله فعلیه په شکل وي او فعل مضارع منفي وي.

نو دا کېږي پنځه احتمالات، پر دې سرېېره زما عزېزانو! ستاسو به په یاد وي، چی په نحومیر کي موږ ویلې وه، چي حال کله د جمله په شکل وي، نو پکي د ذوالحال وطرفته د کوم عائد او رابط کېدل ضروري دي او عائد صرف دوه دي:

①: واو، ②: ضمېر، نو رابط دوه دي او احتمالات پنځه دي او س موږ دغه دوه پر پنځه تقسېموو، نو وایو چی (فالاسمیة بالواو والضمیر او بالواو، او بالضمیر علی ضعف) یعنی حال که چېري د جمله اسمیه په شکل وي، نو د رابط او عائد یې درې صورتونه دي:

①: په یوه وار په واو او ضمېر دواړو سره هم جائز دی، ځکه چی په جمله اسمیه کي استقلال قوي وي، یو خو په خپله معنا ورکولو کي کومې بلې کلمې ته اړتیا نه لري او دوهم دا چي د دې په معنا کي دوام او استمرار وي؛ نو د استقلال د قوي کېدو په وجه هر کتونکی دا یوه مستقله او غیر مربوطه جمله ګڼي، لېکن کله چي موږ عائد ورسره لګوو، نو عائد به هم قوي وي (او دا هغه مهال کېدای سي، کله چي په واو او ضمېر دواړو سره وي)، نو بیا هر څوک ګڼي، چي دا کومه مستقله جمله نه ده، بلکي د دغه واو او ضمېر په ذرېعه له ماقبل سره یوه مربوطه (تړل سوې) جمله ده، لکه (جاءنی زیدٌ وابوه قائمٌ)، په جمله اسمیه کي د عائد تر ټولو غوره صورت همدا دی.

③: او بالواو: دوهم صورت دادی، چې عائد یوازې (واو) وي، دا هم جائز دی، ځکه چې (واو) د معطوف په شروع کې راځي او هغه د دې خبرې علامه وي، چې د وروستنۍ جملې له مخکنۍ جملې سره باقاعده ربط (تړون) سته، لکه (جئتک والشمس طالعة) او په یوه حدیث شریف کې هم دي: (کنتُ نبیًا وآدم بین الماء والطین).

③: او بالضمیر علی ضعف: دریم صورت دادی، چې عائد صرف ضمیر وي، د دې په هکله مصنف رحمه الله وویل، چې دا که څه هم جائز خو دی، لېکن ضعیف صورت دی، ځکه چې ضمیر په عامه توګه د کلام په شروع کې نه وي، بلکې په اخېر کې یې وي او په داسې حالت کې هغه په فوري (سمدستي) ډول دلالت نسي کولای، چې دا جمله له مخکنې اسم سره تړلې او مربوطه ده، بلکې دا یو بېله جمله شمېرل کېږي، لکه (کَلَّمتُهُ فُوهُ اِلَی فِیّ) یعني ما له هغه سره په داسې حال کې خبرې وکړې، چې د هغه مخ زما د مخ وطرفته و، لېکن که چېرې کوم ضمیر په شروع کې وي، نو هلته عائد صرف د ضمیر په صورت راوړل هم جائز دي، لکه (جاءنی زیدٌ هو راکبٌ).

**دریمه خبره:** د مضارع مثبت په صورت کې د رابط صورتونه:

والمضارع المثبت بالضمیر وحده: له پنځو احتمالاتو څخه څلورم احتمال دا چې کله جمله د مضارع مثبت په شکل وي، نو پکې د رابط او عائد یو صورت کېدای سي، چې هلته صرف ضمیر راوړل کېږي، وجه یې لکه چې له نامه څخه یې هم ښکاري، چې مضارع له اسم فاعل سره د حروفو په تعداد او حرکاتو وسکناتو او عمل کې مشابهت لري، نو لکه څرنګه چې اسم فاعل حال واقع سو، نو د عائد لپاره صرف ضمیر کافي وي، دا راز مضارع مثبت هم چې کله حال واقع سي، نو پکې د ربط لپاره یوازې ضمیر بسنه کوي، لکه (جاء زیدٌ یسرع).

**څلورمه خبره:** له دغو دوو ماسوی د رابط صورتونه:

وماسواهما بالواو والضمیر: له پنځو احتمالاتو څخه یې لومړی او څلورم بېل بېل بیان کړل، د پاته دریو په هکله یې وویل، چې حال که چېرې ماضي مثبت یا

منفي، یا مضارع منفي وي، نو د عائد لپاره د جمله اسمیه په څېر دري صورتونه دي:

①: بالواو والضمیر: یعني د عائد لپاره د واو او ضمېر دواړو راوړل هم جائز دي.

(۲، ۳): او باحدهما: یعني له دواړو څخه یو راوړل هم جائز دي، یعني یا خو صرف واو راوړل کېږي، یا صرف ضمېر بېله کوم ضعف څخه.

ځکه چې د جمله دغه دري صورتونه که څه هم مستقل دي، لېکن په مستقل کېدو کي قوي نه دي، یعني په خپله معنا ورکولو کي که څه هم بل چاته اړتیا نلري، خو په معنا کي یې دوام او استمرار نسته، لهذا په استقلال کي د قوي نه کېدو په وجه عائد هغه که واو او ضمېر دواړه وي، یا صرف واو، یا صرف ضمېر وي، په هر صورت له ماقبل سره پر مربوط کېدو دلالت کوي، نو دا ټوټل نه صورتونه جوړېږي، ځکه حال به یا ماضي مثبته وي، یا به ماضي منفي وي، یا به مضارع منفي وي، بیا به له دوی څخه په هریوه کي عائد یا واو او ضمېر دواړه وي، یا به صرف واو، یا صرف ضمېر وي، نو ټوټل نه صورتونه کېږي، چي تفصېل یې په لاندي نقشه کي کتلای سئ:

| د حال حالت | رابط | مثالونه |
| --- | --- | --- |
| مضارع منفي | واو او ضمېر دواړه | جاءنی زید ومایتکلم غلامه |
| ایضًا | صرف ضمېر | جاءنی زید مایتکلم غلامه |
| ایضًا | صرف واو | جاءنی زید ومایتکلم عمرو |
| ماضي مثبت | واو او ضمېر دواړه | جاءنی زید وقد خرج غلامه |
| ایضًا | صرف ضمېر | جاءنی زید قد خرج غلامه |
| ایضًا | صرف ضمېر | جاءنی زید وقد خرج عمرو |
| ماضي منفي | واو او ضمېر دواړه | جاءنی زید و ماخرج غلامه |
| ایضًا | صرف ضمېر | جاءنی زید ماخرج غلامه |
| ایضًا | صرف ضمېر | جاءنی زید وماخرج عمرو |

(تقریر کافیه ص: ۱۹۵)

## پنځه اویایم (۷۵) درس

## پر جمله حالیه د (قد) راتلل او دحال د عامل حذفول

و لابدَّ فی الماضی المثبت من (قد) ظاهرةً او مقدرةً و یجوز حذف العامل کقولک للمسافر: راشدًا مهدیًا و یجب فی المؤکدة، مثل: زیدٌ ابوک عطوفًا، ای: احقه و شرطها ان تکون مقررةً لمضمون جملة اسمیة.

**ترجمه:** او ضروري ده په ماضي مثبت کي (قد) لګول، هغه که په ظاهري توګه وي، یا مقدر وي او جائز دی د حال دعامل حذفول، لکه مسافر ته ستا داسي ویل (راشدًا مهدیًا) او د حال مؤکده لپاره شرط دادی، چي هغه د جمله اسمیه د مضمون لپاره تاکید وي.

**تشریح:** د نن په سبقه کي ځلور خبري دي:

①: په ماضي مثبته کي د (قد) راتلل، ②: دحال د عامل په جوازي توګه حذفول، ③: د حال دعامل په وجوبی ډول حذفول، ④: د حال مؤکده لپاره د عامل د حذفولو شرط.

**لومړی خبره:** په ماضي مثبته کي د (قد) راتلل:

ولابدَّ فی الماضی المثبت من قد: د ماضی مثبته په صورت چی کله جمله حال واقع سي، نو په شروع کي یې د (قد) راوړل ضروري دي، وجه یې داده، چي ماضي پر تېره سوې زمانه دلالت کوي او حال پر موجوده زمانه، نو د ماضی په شروع کي (قد) لګېږي، ددې لپاره چي ماضی د قریب په معنا کړي، نو به دماضي او حال زمانه سره نژدې سي.

تر دې وروسته وایې، چې (ظاهرةً کان او مقدرةً) یعني د (قد) راتلل که په لفظ کې وي، یا مقدر وي دواړه جائز دي، لېکن راتلل یې په هر حال ضروري دي، چې (قد) ظاهر وي، د هغه مثال (قال انی یکون لی غلام و قد بلغنی الکبر وامرأتی عاقر) او (جاءنی زیدٌ قد خرج غلامه) او د (قد) مقدره مثال (او جاؤکم قد حصرت صدورهم).

**یادونه:** د ماضي مثبت په شروع کې خو (قد) راځي، لکه چې تفصیل یې تېر سو، لېکن د ماضی منفي په شروع کې نسي راتلای، ځکه چې د ماضي په شروع کې چې کومه (ما) وي، هغه د کلام صدارت غواړي، بیا که چېرې موږ د ده په شروع کې (قد) راوړو، نو د (ما) د کلام صدارت له مینځه ځي.

## د حال د عامل په جوازي ډول حذفول

**دوهمه خبره:** د حال د عامل په جوازي ډول حذفول:

و یجوز حذف العامل: مخکې موږ ویلې وه، چې (وعاملها الفعل او شبهه او معناه) چې تفصیل یې تېر سوی دی، دلته وایو، چې که کومه قرینه حالیه، یا مقالیه موجوده وی، نو د حال د عامل حذفول جائز دي.

قرینه حالیه دا معنا چې د محذوف پر حذف کېدو د متکلم یا مخاطب حالت دلالت کوی، لکه چې یو څوک په سفر روانېږي، او یو څوک ورته (راشدًا مهدیًا) ووایې، دا په اصل کې (اذهب راشدًا مهدیًا) وو، په دې کې (راشدًا او مهدیًا) دواړه د (اذهب) له ضمیر فاعل څخه حال واقع سوي دی او عامل په دوی کې پخپله (اذهب) دی، چې د قرینه حالیه له وجې حذف کړل سوی دی او هغه قرینه د مخاطب په سفر تلل دی، نو پوره عبارت دادي: (اذهب حال کونک راشدًا مهدیًا، ای مدلولًا علی الطریق المستقیم الموصل الی المقصد).

او قرینه مقالیه دا معنا چې د محذوف پر حذف کېدو د متکلم یا مخاطب کوم قول (وینا) دلالت کوي، لکه چې یو څوک سوال وکړي (کیف جئتَ؟)، ته یې په جواب کې ووایې: (راکبًا) دا په اصل کې (جئتُ راکبًا) و، (جئتُ) عامل د قرینه مقالیه یعنی د سائل د سوال په وجه حذف کړل سو، دا راز په (ایحسب الانسان ان لن نجمع عظامه بلیٰ قادرین علیٰ ان نسویَ بنانه) کی هم (قادرین)

د متکلم له ضمیر څخه حال واقع سوی دی، چې عامل (نجمع) یې حذف کړل سوی دی.

**درییمه خبره:** د حال دعامل په وجوبي ډول حذفول

ویجب في المؤکدة: مصنف رحمه الله وایې: چې په عامه توګه خو د حال د عامل حذفول جائز دي، لېکن که چېرې حال مؤکده وي، نو د عامل حذفول یې واجب دي، د حال مؤکده مطلب دادی، چې د حال له ذوالحال سره داسي ټېنګ تړاو (تعلق) وي، چې په عامه توګه نه سره بېلېږي، یا په اسانه تکو کي چې حال مؤکده هغه دی، چې د هغې معنا تاکید کوي، کومه چې له سابقه جملې څخه فهمېږي، لکه (زیدٌ ابوک عطوفًا) دلته (عطوفًا) له (ابوک) څخه حال واقع سوی دی، د دې معنا ده (مهرباني) او د مهربانۍ معنا په عامه توګه په پلارکي موجوده وی، کله هم نه ځیني بیلېږي (الا ماشاءالله)، نو دلته (عطوفًا) حال مؤکده جوړېږي او دده عامل کوم چې (احقه) صیغه واحد متکلم د نصرینصر افعال له باب څخه ده، د دې حذفول واجب دي.

### د حال مؤکده دعامل دحذف کېدو لپاره شرط

**څلورمه خبره:** د حال مؤکده دعامل دحذف کېدو لپاره شرط:

و شرطها ان تکون مقررة لمضمون جملة اسمیة: چې د حال مؤکده د عامل د حذف کېدو لپاره شرط دادی، چې هغه به کومه نوې معنا نه ثابتوي، بلکي د مخکنۍ جملې اسمیه مضمون به ثابتوي، لکه په مذکور مثال (زیدٌ ابوک عطوفًا) کي (زیدٌ ابوک) جمله اسمیه ده او عطوفیت یعنی مهرباني مخکي لا فهمول سوې وه، بیا یې په (عطوفًا) سره نور هم تاکید وسو، څرنګه چې دلته دا شرط موجود دی، نو ځکه د ده دعامل (احقه) حذفول واجب دي.

د کافیه ملاصاحب رحمه الله چې د (مقررة لمضمون جملة) کوم قید لګولی دی، په دې سره د (انا ارسلناک رسولا) په څېر ترکیبونه ووتل، ځکه چې دلته (رسولا) حال مؤکده دی، لېکن د جمله له پوره مضمون څخه حال نه دی، بلکي صرف له (ارسلناک) څخه حال واقع سوی دی، ځکه یې نو عامل نه حذف کېږي.

دا راز دوهم قید (اسمية) د دې په ذريعه د (شهدالله انه لا اله الا هو والملائكة واولو العلم قائمًا بالقسط) په څېر ترکیبونه ووتل، ځکه چې (قائمًا) حال مؤكده خو دی او د پوره جملې مضمون يې هم ثابت کړی دی، لېکن دا جمله اسميه نه ده، بلکې فعلیه ده، ځکه یې نو عامل هم حذف نکړل سو، والله اعلم بالصواب.

## شپږاویایم (۷۶) درس

### داووم منصوب (تمییز) بیان

التميز ما يرفع الابهام المستقر عن ذات مذكورة او مقدرة، فالأول عن مفرد مقدار غالبًا اما فی عددٍ، نحو: عشرون درهمًا و سيأتی واما فی غيره، نحو: رطلٌ زيتًا ومنوان سمنًا وقفيزان برًا، وعلى التمرة مثلها زبدًا.

**ترجمه:** تمییز هغه اسم دی، کوم چې له مذکوره یا مقدره ذات څخه هغه ابهام لیري کوی، کوم چې په ده کې پوخ او راسخ وي، بیا لومړی کوم چې له (ذات مذکوره) څخه ابهام لیری کوي، هغه اکثره له مقدار څخه ابهام لیري کوي، مقدار یا خو په عدد کې وي، لکه (عشرون درهمًا) (او ژر به ددې زيات بيان راسي) او یا به مقدار له عدد پرته په کوم بل شی کې وي، لکه (رطلٌ زيتًا ومنوان سمنًا وقفيزان برًا وعلى التمرة مثلها زبدًا).

**تشریح:** د نن په سبقه کې پنځه خبرې دي:

①: د تمییز تعریف او پکې د قیدونو فائدې، ②: د تمییز قسمونه، ③: د لومړی قسم تفصیل، ④: د عن مفردٍ مقدارٍ تفصیل، ⑤: یو سوال او جواب یې.

### د تمییز تعریف

**لومړۍ خبره: د تمییز تعریف:**

التميز ما يرفع الابهام المستقر عن ذات مذكورة ا و مقدرة، یعني تمییز هغه اسم دی، کوم چې له ذات مذکوره، یا ذات مقدره څخه داسې ابهام لیري کوي، کوم چې د دغو دواړو په معنی موضوع له کې پوخ او مضبوط وي، یا په بل عبارت

چي تمیيز هغه اسم دی، کوم چي له ذات مذکوره، یا مقدره څخه وضعي ابهام
لیري کوي.

## په تعریف کي د قیدونو فائدې:

التمیيز ما یرفع الابهام المستقر عن ذات مذکورة او مقدرة : په دې عبارت کي
(التمیز) معرّف دی او له (ما) څخه واخله تر (اومقدرة) پوري پوره عبارت یې
تعریف دی، بیا په تعریف کي لفظ د (ما) جنس دی او (یرفع الابهام) لومړی
فصل دی او (المستقر) دوهم فصل دی او (عن ذات مذکورة او مقدرة) دریم فصل دی.
نو (ما) د جنس کېدو په وجه ټول اسماء په دې تعریف کي شامل سو،د (یرفع
الابهام) لومړي فصل په وجه هغه اسماء کوم چې بدل جوړېږي ووتل، ځکه چی
بدل له مبدل منه څخه د ابهام د لیري کولو لپاره نه راځي، بلکي د هغه د
پرېښودلو او نه مرادولو لپاره راځي، لکه (جاءني زیدٌ عمروًا) راغی ماته زید، نه
نه بلکي عمر راغی، نو دلته دا خبره واضح سوه، چی متکلم په خپل کلام کي د
عمر په ذرېعه له زید څخه ابهام لیري نکړ، بلکي هغه یې پرېښود او د هغه په بدل
کي یې عمر مراد کړ.
په (المستقر) دوهم فصل سره هغه صفت ووت، کوم چی له خپل متبوع مشترک
څخه ابهام لیري کوي، یعنی د دې څو معناوي راځي، مثلا لفظ د (عینٌ) دی
ددې معنا چینه هم ده او سترګه هم او ګونده هم، لېکن له دغو څخه چي کومه یو
هم ته ذکر کړي، نو له متبوع څخه ابهام لیري کېږي، لکه (رأیتُ عینًا جاریةً) دلته
(جاریة) د چینې تعېن وکړ، په دې کي چي د تعددوضع په وجه سره کوم ابهام
و، هغه یې لیري کړ، لېکن ابهام وضعي یې نه دی لیري کړی، ځکه چی د اصل
وضع په اعتبار سره په دې کي هېڅ ابهام نه و، بلکي په دې کي چي کوم ابهام و،
هغه صرف دده دمتعدد معناوو په وجه سره و.
دا راز په (رأیت اباحفص عمر) کي (عمر) هم د دغه قید په ذرېعه ووت، ځکه
چي دلته عمر که څه هم ابهام خو لیري کړ، لېکن ابهام وضعي نه، ځکه چي د
(ابوحفص) په موضوع له کي ابهام هېڅ نسته، بلکي هغه خو د ذات معینه لپاره
وضع کړل سوی و، صرف دا چي هغه ذات په ابو حفص سره مشهور نه و، نو د

عدم اشتهار په وجه پکې ابهام پیداسو، کوم چې عمر لیرې کړ، خلاصه دا چې دلته چې کوم ابهام و، هغه د اصل وضع له وجې نه و، بلکې د عدم اشتهار په وجه و.

عن ذات مذکورة: دا دریم فصل دی، د دې په وجه حال او صفت دواړه ووتل، ځکه هغه داوړه که څه هم ابهام لیرې کوي، خو ابهام ذاتي نه، بلکې ابهام وضعي لیرې کوي، لکه په (جاءنی زیدٌ راکبًا) کې چې (راکبًا) له (زیدٌ) څخه ابهام ذاتي نه دی لیرې کړی، ځکه چې د زید په ذات کې ابهام نه و، هغه خو یو معین شخص دی، بلکې ابهام وضعي یې ځینی لیرې کړ، ځکه چې په زید کې د وصف په اعتبار سره ابهام و، چې زید خو راغی، لېکن دا معلومه نه وه، چې آیا په موټر کې راغی، یا پیاده راغی؟، نو (راکبًا) ابهام ځیني لیرې کړ، دا راز په (جاءنی رجلٌ عالمٌ) کې د رجل په ذات کې هیڅ ابهام نه و، بلکې په وصف کې یې ابهام و، نو (عالمٌ) راغی هغه ابهام یې له مینځه یووړ.

## د تمیېز قسمونه او وضاحت یې

**دوهمه خبره:** د تمیېز قسمونه او وضاحت یې:

د تمیېز په تعریف کې مصنف رحمه الله علیه (ذات مذکور او مقدرة) ویلې وه، نو له دې څخه ښکارېږي، چې تمیېز پر دوه قسمه دی:

①: هغه چې له ذات مذکوره څخه ابهام لیرې کوي، لکه (عندي رطلٌ زیتًا) دلته (زیتًا) له (رطلٌ) څخه ابهام لیرې کړی دی، کوم چې مذکور دی.

②: هغه چې له ذات مقدره څخه ابهام لیرې کوي، لکه (طاب زیدٌ نفسًا) دلته (نفسًا) له ذات مقدره یعني له (شئ) څخه ابهام لیرې کړی دی او هغه مذکور نه دی، نو چې محذوف عبارت را وایستل سي، پوره عبارت داسي کېږي: (طاب شئٌ منسوبٌ الیٰ زیدٍ نفسًا).

**فائده:** دلته د تمیېز په تعریف کې درې شیان ذکر سو: ①: ذات، ②: مذکوره، ③: مقدره.

له ذات څخه مراد هغه اسم دی، کوم چې په ممکنات اربعه وو یعني په تنوین، نون تثنیه، نون جمع، یا نون مشابه بنون الجمع او اضافت سره پوره سوی وي.

او (مذکوره) معنا هغه اسم مبهم چې په مخکښي عبارت کې مذکور وي.

او (مقدره) معنا هغه اسم مبهم چي په مخکني عبارت کي مذکور نه وي، بلکي محذوف وي او په راتلونکي کي یې تفصیل را روان وي.

**درېیمه خبره**: د لومړي قسم تفصیل:

مصنف رحمه الله د تمیېز تعریف او د تعریف په ضمن کي د هغه د قسمونو وطرفته اشاره وکړه، کله چي فارغ سو، نو اوس دهغو دوو قسمونو تفصیل بیانوي، وایې: (فالأوّل عن مفرد مقدار غالبًا) یعني د تمیېز لومړی قسم کوم چي له ذات مذکوره څخه ابهام لیري کوي، هغه ذات مذکوره او ممیّز به اکثره وخت مفرد وي، د مفرد مطلب دادی، چي هغه ممیّز جمله، یا شبه جمله نه وي.

او مقدار هغه شی ته وایې، په کوم سره چي د بېلابېلو شیانو اندازه لګول کېږي، او داسي شیان تو ټل پنځه دي، د کومو په ذریعه چي د شیانو اندازه معلومېږي: عدد، کیل، وزن، مساحت او مقیاس، چي یو شاعر په خپل شعر کي یو ځای کړي دي:

پنج انـــد جـــانِ مَن تو مقـــادیر را شناس
کیل است و وزن وعدد وذراع است وهم مقیاس

د (غالبًا) په قید سره دې خبرې ته اشاره ده، چي کله کله همدا مفرد تمیېز له غیر مقداري شیانو څخه هم ابهام لیري کوي، لکه (خاتمٌ حدیدًا) په دې کي (خاتمٌ) ذات مذکوره د (مذکورة) په معنا اخلي، که څه هم مِفرد خو دی، لیکن د مقدار له پنځو قسمونو څخه یو قسم نه دی او بیا یې هم له ده څخه ابهام لیري کړی دی.

څلورمه خبره: د عن مفرد مقدار تفصیل:

**اما فی عدد**: په دې سره مصنف رحمه الله د (عن مفردٍ مقدارٍ) تفصیل او د هغه د ځیني قسمونو مثالونه بیانوي، نو وایې: (اما فی عدد) یعني هغه مقدار به یا د عدد په ضمن کي وی، لکه (عشرون درهمًا) دا دمشابه بنون الجمع مثال دی، ځکه (عشرون) د جمع په نون سره تمام (پوره) سوی دی او حاشیه والا ویلي دي: چي دلته د (عشرون) په مثال راوړلو سره دوو شیانو ته اشاره ده، یو دا چي (عشرون) په مشابه بنون الجمع سره پوره سوی دی او دوهم دا چي (درهمًا) له عدد څخه ابهام لیري کړی دی، ځکه مخکي دده مصداق نه معلومېدی، چي

درهم مراد دي، که دینار، یا کوم بل شی، لیکن کله چي یې (درهمًا) وویل، نو ټول احتمالات له مینځه ولاړه، صرف دراهم متعین سوه، که یې د دې پر ځای د (احدعشر درهمًا)، یا کوم بل مثال راوړی وای، نو صرف د عدد وضاحت خو به سوی وای، لیکن د جمع په نون سره د پوره کېدو به کوم وضاحت نه وای سوی.

و سیأتی: یعني دعدد د تمییز ذکر به په پوره تفصیل او بسط سره ان شاء الله تعالیٰ د اسماء عدد په بحث کي راسي.

**و اما فی غیره:** څرنګه چي پورته موږ وویل، چي په (اما فی عدد) سره مصنف رحمه الله د (عن مفرد مقدار) تفصیل بیانوي او د (اما فی عدد) په ضمن کي یې یو صورت او مثال بیان سوه، اوس ددې د دوهم صورت بیان کوي، چي هغه مفرد مقداري، یا د غیر عدد په ضمن کي وي، د دې لپاره مصنف رحمه الله څلور مثالونه وړاندي کړی دي:

**لومړی مثال:** تمییز له مفرد مقداري وزني څخه:

رطلٌ زیتًا: د دې پوره عبارت (عندی رطلٌ زیتًا) دی، یعنی له ما سره یو رطل دي له غوړیو څخه، دلته (زیتًا) نکره دی، کوم چي له داسي مقدار څخه ابهام لیري کړی، چي د وزن (تللو) په ذریعه معلومېږي.

د تمییز له مفرد مقداري وزني څخه دوهم مثال:

**منوان سمنًا:** د دې اصل عبارت (عندی منوان سمنًا) دی، یعني له ما سره دوه سېره دي ازروی غوړي، دا دمفرد مقداري وزني دوهم مثال دی، په دې کي (منوان) د (من) تثنیه ده، کوم چي اسم تام مبهم ممیّز دی او داسي مقدار دی، کوم چي په تول معلومېږي، په دې کي ابهام و، نو (سمنًا) هغه ابهام لیري کړ.

دریم مثال: تمییز له مفرد مقداري کیلي څخه:

**قفیزان برًا:** دا په اصل کي (عندی قفیزان برًا) و، یعني له ما سره دوې پیمانې له غنمو څخه دي، په دې کي هم (قفیزان) د (قفیزًا) تثنیه ده، کومه چي د یوه خاص قسم پیمانه ده، په دې کي ابهام و، چي (برًا) هغه له مینځه یووړ.

**څلورم مثال:** تمییز له مفرد مقداري قیاسي څخه:

علی التمرة مثلها زبدًا: یعني پر خورما ددې په مثل دي له کوچو څخه، په دې کي (زبدًا) اسم نکره ده او له داسي مقدار څخه ابهام لیري کوي، کوم چی په اندازه سره معلومیږي، لکه په دې مثال کي (مثلها) اسم تام مبهم دی او داسي مقدار دی، چي په اندازه سره معلومیږي، نو (زبدًا) هغه ابهام لیري کړ.

**پنځمه خبره:** یو سوال او جواب یې:

تر دې ځایه په رسېدو ځینی طالبان سوال کولای سي، چي مصنف رحمه الله د (مفردٍ مقدارٍ) تفصیل بیان کړ، دده دوه صورتونه یعني (اما فی عددٍ واما فی غیره) بیان کړل، نو د انصاف غوښتنه خو دا وه، چي د دواړو لپاره یې یو ډول مثالونه بیان کړي وای، دا کومه خبره د ه، چي د لومړی صورت، یعني د (اما فی عدد) لپاره یې صرف یو مثال وړاندي کړاو د دوهم صورت یعني د (اما فی غیره) لپاره یې څلور مثالونه راوړل؟، حال دا چي که یې چیري د دوهم صورت لپاره هم یو مثال راوړی وای، نو د ممثل له وضاحت په کېدی؟

د دې جواب دادی، چي مصنف رحمه الله لکه څرنګه چي ددوو فائدو طرفته اشاره کړې، یوه دا چی د تمیېز عامل اسم تام وي او د اسم د پوره والي څو صورتونه دي، نو د هغو مثالونو په ضمن کي هغه تمام صورتونه پخپله راغله، مثلا اسم به یا په تنوین سره تام وي، د کوم وطرفته چي مصنف رحمه الله د (رطلٌ زیتًا) په مثال اشاره کړې ده، یا به په نون د تثنیه سره تام سوی وي، د کوم طرفته چی یې په (منوان سمنًا) او (قفیزان برًا) مثال اشاره کړې ده، یا به په اضافت سره تام سوی وي، د کوم طرفته چي یې په (علی التمرة مثلها زبدًا) مثال اشاره کړې ده، او کله کله په نون د جمع او مشابه بنون الجمع پوره سوی وي، د کوم طرفته چي یې په (عشرون درهمًا) مثال سره اشاره کړې د ه.

مصنف رحمه الله په مشابه بنون الجمع د پوره سوي اسم مثال ورکړی دی، خو په نون جمع حقیقي د پوره سوي اسم یې هیڅ مثال نه راوړی؟ دا ځکه چي دا خبره پخپله په پوهه کي راځي، چي کله د مشابه بنونا لجمع په ذریعه یو اسم تامیږي، نو په نون د جمع حقیقي سره خو په طریقه اولیٰ تامیږي، چي مثال یې دادی: (قل هل ننبئکم بالأخسرین اعمالًا).

دوهمه فائده داده، چي له دغو مثالونو څخه مقصود دا ښودل دي، چي د غیر عدد څو صورتونه او څو اعتبارات دي، یعني کله کله خو هغه د وزن په شکل وي، لکه په لومړیو دوو مثالونو یې ورته اشاره کړې او کله کله د کیل په شکل وي، چي په دریم مثال یې اشاره ورته کړې او کله کله د مقیاس په شکل وي، چي په څلورم مثال یې اشاره ورته کړې ده.

پر لومړۍ فائده سوال کېدای سي، چي جنابه! تا چي د کثرت امثله وو کوم بیان کړي، چي په دې سره د هغو شیانو طرفته اشاره کول مقصود وه، په کومو سره چي اسم تامېږي، نو دومره خو پوه سو، لېکن اسم صرف په دغو شیانو نه تامېږي، بلکي پر دغو شیانو سربېره په الف لام سره هم تامېږي، نو مناسب خو داوه، چي مصنف رحمه الله یو بل مثال هم وړاندي کړی وای، چي دغه طرفته هم اشاره راغلې وای؟

د دې جواب دادی، چي د اسم له تامېدو څخه مراد هغه اسم دی، کوم چي تمیېز ته نصب ورکوي او معرف باللام تمیېز ته نصب نسي ورکولای، ځکه چي اسم تام له فعل سره مشابهت لري او د مذکوره څلورو شیانو له فاعل سره مشابهت سته او له دوی وروسته د تمیېز له مفعول به سره مشابهت سته، لکه څرنګه چي فعل په خپل فاعل تامېږي او تر فاعل وروسته مفعول و، نو هغه ته نصب ورکوي، بلکل همداسي اسم ممیز په اشیاء مذکوره سره تامېږي، اسم تمیېز ته نصب ورکوي، لېکن الف لام خو د اسم په شروع کی وي، د کوم به وجه چي له فاعل سره مشابهت نسي کېدای، نو د مشابهت نه لرلو له وجې هغه تمیېز ته نصب نسي ورکولای، له همدې وجې مصنف رحمه الله هغه ذکر نکړ.

فائده: په (فالأول عن مفردٍ مقدارٍ) کي (مقدارٍ) د (مقدّرٌ) په معنا دی، ځکه چي تمیېز له مقدار څخه ابهام نه لیري کوي، بلکي له مقدراتو څخه ابهام لیري کوي، ځکه چي (عشرون، قفیزان، منوان او رطلٌ) د مخصوصو (ټاکلیو) معناو لپاره وضع سوي دي، په کومو کي چي ابهام هېڅ نسته، خو د دوی په مصداق کي ابهام وي، مثلاً د (عشرون) مصداق څه دی او د (قفیزان) مکیل څه دی وغیره، وغیره.

## اووه اویایم (۷۷) درس

## له تمیېز سره تړلې درې اهمي مسئلې

فیفردان کان جنسًا الا ان یقصد الأنواع و یجمع فی غیره، ثم ان کان بتنوین او بنون التثنیة، جازت الاضافة والا فلا وعن غیر مقدار، مثل: خاتمٌ حدیدًا والخفض اکثر.

**ترجمه**: بیا که چېري اسم تمیېز جنس و، نو د تل لپاره مفرد راوړل کېږي، لېکن هو کې! که چېري جنس خو وي، لېکن مختلف انواع ځینی مراد سوي وي، نو بیا د هغه د ضمیر مطابق راوړل کېږي او له جنس پرته که جمع راسي، نو بیا به کتل کېږي، که چېري تمیېز په تنوین، یا نون تثنیه سره پوره سوی و، نو اضافت کول یې جائز دي او که چېري په دغو دوو سره نه و تام سوی، نو بیا یې اضافت کول جائز نه دي او داراز له هغه مفرد څخه هم ابهام لیري کوي، کوم چې مقدار نه وي، لکه (خاتمٌ حدیدًا) خو په داسي صورتونو کي تمیېز اکثره مجرور وي.

تشریح: د نن په سبق کي له تمیېز سره تړلې درې مهمي مسئلې ذکر کېږي:

لومړۍ مسئله: د تمیېز مفرد، تثنیه او جمع کېدل:

فیفرد ان کان جنسًا: فاضل مصنف رحمه الله د غیر عدد د تمیېز په هکله وایې، چې هغه کله مفرد وي او کله تثنیه او کله جمع، نو ویې ویل (فیفرد ان کان جنسًا) یعني د غیر عدد تمیېز که چېري جنس و، نو مفرد راوړل کېږي، که څه هم اسم تام یعني ممیز تثنیه یا جمع وي، ځکه چې د جنس اطلاق پر قلیل او کثیر تولو یو ډول کېږي، په دې شرط چې هغه له تاء وحدت څخه خالي وي، لکه (عندی رطلٌ زیتًا، عندی رطلان زیتًا او عندی ارطال زیتًا).

**الا ان یقصد الأنواع**: په دې عبارت کي له مذکوره قاعدې څخه یو استثنایي صورت بیانېږي: چې تمیېز که چېري جنس و، نو د تل لپاره مفرد راوړل کېږي، لېکن که چېري له جنس څخه مختلف قسم انواع او اقسام مراد وي، نو په دې صورت کي د هغو انواعو او اقسامو په مناسبت تمیېز تثنیه او جمع راځي، مثلاً که چېري له دغه جنس څخه یو قسم مراد وي، نو مفرد راوړل کېږي، که دوه مراد وو، نو تثنیه او که تر دوو زیات مراد وو، نو جمع راوړل کېږي، لکه (عندی رطل

زیتًا) له ما سره یو قسم تېل دي او (عندی رطلان زیتین) یعني له ما سره دوه قسمه تېل دي او (عندي ارطال زیوتًا) له ما سره څو قسمه تېل دي.
ویُجمع فی غیره: که چېرې تمیېز اسم جنس نه و، نو دده تثنیه او جمع راوړل کېږي، لکه (عندی عدلٌ ثوبًا) او (عندی عدل ثوبَین او عندی عدلٌ اثوابًا).
د مصنف رحمه الله په (ویُجمع) ویلو سره مراد مافوق الواحد دی، یعني تثنیه هم پکي داخله ده، لکه چي په حدیث شریف کي راغلي دي: الاثنان فما فوقهما جماعة).

## داسم تام مضاف کېدل

**دوهمه مسئله:** داسم تام مضاف کېدل: ثم ان کان بتنوین او بنون التثنیة جازت الاضافة: مصنف رحمه الله مخکي له تمیېز سره د تړلي لومړۍ مسئلې بیان وکړ، اوس له ممیّز سره د تړلي یوې مسئلې بیان کوي، وایې: لېکن که چېرې تر دې مخکي داسم تام تعریف وسي، نو کېدای سي، چي په پوهه کي څه اساني راسي:
اسم تام هغه اسم ته وایې، چي اسم داسي حالت ته ورسېږي، چي اضافت یې بلې کلمې ته نسي کېدای.
په کومو شیانو چي اسم تامېږي، د هغو پوره تفصیل مخکي تېر سو.
تر دغه تمهېد وروسته مسئلې ته غوږ سئ، چي اسم (ممیز) که چېرې په تنوین، یا نون تثنیه سره تام سوی و، نو د تخفیف لپاره د تمیېز طرفته دده اضافت کول که چېرې کېدی، نو جائز دی، لکه د (عندی رطلٌ زیتًا) پرځای (عندی رطلُ زیتٍ) او د (عندی منوانِ سمنًا) پرځای (عندی منوانِ سمنٍ)، دا راز د (عندی قفیزان برًّا) پرځای (عندی قفیزان برٍ).
والا فلا: چي که چېرې اسم په تنوین او نون تثنیه سره نه بلکي په کوم بل شی (مثلاً په مشابه بنون الجمع یا اضافت) سره تام سوی و، نو په داسي صورت کي یې د تمیېز وطرته اضافت صحیح نه دی، لکه د (عندی عشرون درهمًا) پرځای (عندی عشرون درهمٍ) نسي ویل کېدای او نه د (علی التمرة مثلها زبدًا) پرځای (علی التمرة مثلها زبدٍ) ویل کېدای سي.

په مشابه بنون الجمع كي د اضافت د عدم جواز وجه داده، چي د ده داضافت په وخت كي كه چيري نون مشابه حذف كړل سي، نو د نون اصلي حذفول لازميږي، كوم چي ناجائز دی او كه چيري حذف نسي، نو هم صحيح نه دی، ځكه چي د جمع له نون سره يې مخالفت لازميږي، ځكه چي د جمع نون د اضافت په وخت كی حذف كيږي او كه باقي پاته سي، نو مشابهت له مينځه ځي.

نو په لومړي صورت كي دالتباس په وجه اضافت ناجائز سو او په دوهم كی طرداً للباب ناجائز سو، خلاصه دا چي د مشابه نون جمع اضافت د تميېز وطرفته، يا چيري چي له تميېز سره التباس لازميږي ناجائز دی.

دلته سوال كيږي، چی عرب حضرات خو (عشرون درهمٍ) او (سنُون) مضاف استعمالوي او تاسو وويل چي دا ناجائز دي؟

د دې جواب دادی، چي په شرح جامي ص:(۵۵۳) كي پر حاشيه علامه محمد بن موسی بستوي رحمه الله عليه ليكلي دي، چي داسي مثال موږ له كوم فصيح، بليغ او معتدبه (د اعتبار وړ) عرب شخه نه دی اوريدلی، كه چيري وي هم، نو بيا دا شاذ دی، كوم چی په عامه توګه د جواز لپاره علت نسي كيدای.

او كه چيري اسم په اضافت سره تام سوی و، د ده اضافت هم د تميېز وطرفته ځكه نا جائز دی، چي دا سم وطرفته خو هغه له مخكي لا مضاف دی او كه چيري د بل اسم وطرفته هم د ده اضافت وسي، نو د يوه اسم په يوه وخت كي ببله كوم فصل شخه د دوو اسمونو وطرفته مضاف كيدل لازميږي او داسي كول ناجائز دي، لكه چي په (وان تجمعوا بين الأختين) كي الله جل جلاله د دوو خوندو په يوه وار په نكاح كي ساتل ناجائز بللي دي.

دلته سوال كيږي، چي د عربو په كلام كي (كل واحدٍ واحدٍ او كل فردٍ فردٍ) ډېر استعمال سوی دی، حال دا چي تاسو وويل چي داسي كول ناجائز دي؟

د دې جواب دادی، چی بېشكه! عرب دا استعمالوي، خو هغه د (واو) حرف عطف په تقدير سره استعمالوي، نو ګوا كی چي د (كل واحدٍ واحدٍ) پوره عبارت (كل واحدٍ وواحدٍ) دی.

**وعن غیر مقدار**: تاسو مخکې ویلې وه، چې (فالأول عن مفرد مقدار غالبًا) نو دا عبارت پر هغه عطف دی، لیکن په تقدیر د موصوف، نو پوره عبارت داسې دی: (فالأول یرفع عن مفرد مقدار غالبًا وعن مفرد غیر مقدار احیانًا) یعني لومړی قسم یعني له ذات مذکوره څخه ابهام لیري کوونکی تمییز په عامه توګه له مفرد مقداري څخه ابهام لیري کوي، لیکن کله کله له مفرد غیر مقداري څخه هم، د غیرمقداري مطلب دا دی، چې هغه مفرد نه عدد وي، نه وزن وي او نه کیلی وي او نه مقیاس وي، لکه (خاتمٌ حدیدًا).

**والخفض اکثر**: مصنف رحمة الله علیه د مفرد غیرمقداري د تمییز اعراب بیانوي، چې داسې تمییز اکثره وخت مجرور وي، ځکه چې په دې کې د ممیّز اضافت د تمییز طرفته مضاف وي، نو د مضاف الیه کېدو په وجه سره هغه مجرور کېږي، لکه (خاتم حدیدٍ).

د مجرور کېدو دوهمه وجه یې دا ده، چې په مفرد مقداري کې ابهام اصل او علی وجه الکمال وي، ځکه چې په مفرد مقداري کې اجناس بې شمېره وي، نو ګواکې چې دده په پر تمییز کېدو تنصیص (تصریح) سوی ده او دده تمییز کېدل پوخ سوی دی، ځرنګه چې تمییز منصوب وي، ځکه نو دا هم منصوب کېږي، په خلاف د مفرد غیر مقداري، چې په هغه کې د اجناسو د نه ډېرېدو په وجه ابهام ناقص وي، نو ګواکې چې د ده تمییز کېدل پوخ نه وي، له همدې وجې دی په اکثري توګه مجرور ویل کېږي.

## اته اویایم (۷۸) درس

## د تمییز د دوهم قسم بیان

والثانی عن نسبة فی جملة او ما ضاهاها، مثل: طاب زیدٌ نفسًا وزیدٌ طیبٌ ابًا و ابوةً و دارًا وعلمًا او فی اضافة، مثل: یُعجبنی طیبه ابا و ابوة ودارًا وعلمًا ولله درُّهُ فارسًا.

**ترجمه**: او دوهم قسم له هغه نسبت څخه ابهام لیري کوي، کوم چې په جمله یا شبه جمله کې وي، لکه (طاب زیدٌ نفسًا) او (زیدٌ طیبُ ابًا و ابوةً و دارًا وعلمًا)، یا

له هغه نسبت څخه کوم چې په اضافت کې وي، لکه (یُعجبنی طیبه ابًا و ابوةً ودارًا وعلمًا ولله دَرُّه فارسًا) یعني له الله جل جلاله سره د ده ډېر خیر دی په اعتبار د سپړېدو.

**تشریح**: دنن په سبقه کې صرف دوې خبرې دي:

①: د تمییز د دوهم قسم بیان، ②: د کافیه د ملاصاحب پر علماء نحو رد.

**لومړی خبره**: د تمییز د دوهم قسم بیان:

والثانی عن نسبة فی جملة او ما ضاهاها: کله چې مصنف رحمه الله د تمیز د لومړي قسم له بیانولو فارغ سو، نو اوس د دوهم قسم بیان کوي، وایې: چې د تمییز دوهم قسم هغه دی، کوم چې له هغه نسبت (منسوب الیه) څخه ابهام لیري کوي، کوم چې په جمله یا شبه جمله کې وي، لکه د جمله فعلیه مثال (طاب زیدٌ نفسًا) په دې کې منسوب الیه زید دی او هغه شی دکوم چې زید ته نسبت سوی دی په هغه کې ابهام و، چې هغه کوم شی دی، نو په (نفسًا) سره هغه ابهام لیري سو، معنا یې داسې سوه: زید ښه دی د خپل ذات په اعتبارسره او د شبه جمله مثال (زیدٌ طیبٌ ابًا) د دې دوې معناوې دي: لومړی دا چې زید ښه پلار دی او دوهمه دا چې د زید پلار ښه دی، قرینې ته په کتلو سره یې معنا داسې کېږي: زید له خپلو اولادونو سره ښه چلند کوي، کله چې څوک ووایې (زیدٌ طیبٌ ابًا) نو معنا یې دا کېږي، چې زید ښه پلار دی او کله چې د زید پلار له زید سره ښه چلند کوي، نو چې څوک ووایې (زیدٌ طیبٌ ابًا) نو معنا یې داسې کېږي: چې د زید پلار ښه دی.

د شبه جمله دوهم مثال (زیدٌ طیبٌ ابوةً)، دا راز همدا مثال د جمله فعلیه لپاره هم کېدای سی، لکه (طابَ زیدٌ ابوةً)، درییم مثال: (زیدٌ طیبٌ دارًا) او (طاب زیدٌ دارًا) څلورم مثال: (زیدٌ طیبٌ علمًا) او (طاب زیدٌ علمًا).

تاسو ولېدل، چې مذکوره مثالونه موږ د جمله فعلیه او شبه جمله دواړو لپاره بللي دي، نو دا سوال نسي کېدای، چې څه وجه ده، چې د کافیه ملاصاحب رحمه الله

د جمله فعلیه لپاره صرف یو مثال راوړی او د شبه جمله لپاره یې پنځه مثالونه راوړي دي.
خو یو سوال اوس هم کېدای سي، چي جنابه! په عامه توګه چي کومه مسئله هم وي، د هغې لپاره یو مثال راوړل کېږي، ځکه په مثال د ممثل له وضاحت مقصود وي او هغه په یوه مثال سره کېږي، نو تاسو پنځه مثالونه ولې راوړي دي؟
د دې جواب دادی، چي هغه تمیېز کوم چي له نسبت څخه ابهام لیري کوي، د عربو په پوره کلام کي د هغه پنځه قسمونه دي، نو د مصنف رحمه الله پنځه مثالونه راوړل د هغو پنځو قسمونو طرفته اشاره ده، چي پوره تفصیل به یې انشاء الله تعالیٰ په شرح جامي کي تاسو ته راسي.
او فی اضافة: دا پر مخکي (فی جملةٍ) عطف دی، نو معنا یې داسي کېږي، چي د تمیېز دوهم قسم هغه دی، کوم چي له هغه نسبت څخه ابهام لیري کوي، کوم چي په جمله کي وي، یا په شبه جمله کي وي، یا په مضاف کي وي، لکه (یُعجبنی طیبه ابًا، یا ابوةً یا دارًا یا علمًا).
وګوره! دلته د شبه جمله اضافت د ضمیر وطرفته سوی دی او په دغه اضافت کي ابهام و، نو له (ابًا، ابوةً، دارًا او علمًا) څخه یو یو راغی، هغه ابهام یې لیري کړ.
**دوهمه خبره**: د کافیه د ملاصاحب رحمه الله پر نحوي علماؤ رد:
وللّٰه درّه فارسًا: په ظاهره خو پر دغه مثال سوال کېږي، چي د کافیه ملاصاحب دا ولې راوړي دي؟ ، ځکه چي دا نه خو د لومړي قسم په مثالونو کي شاملېږي او نه د قسم ثاني په مثالونو کي؟
د دې جواب دادی: چي د دې په راوړلو کي دوې فائدې ترلاسه کېږي:
①: د نحوي پر جمهورو علماؤ رد کول، ځکه چي د هغوی مذهب دادی، چي د تمیېز لپاره د اسم جامد کېدل ضروري دي، تر دې پوري چي که چېري اسم مشتق تمیېز راسي، نو دا حضرات هغه تمیېز نه جوړوي، بلکي هر هغه اسم کوم چي ابهام لیري کړی وی، هغه تمیېز جوړول جائز دی، هغه که اسم جامد وي، که مشتق لکه په مذکور مثال کي (فارسًا) صیغه د اسم فاعل یعني اسم مشتق

تمیېز واقع سوی دی، که چېري په واقع کي دا شرط وای، نو (فارسًا) به کله هم تمیېز نه وای جوړ سوی.

②: پر هغو نحوي علماؤ رد کول، کوم چي ددې خبرې قائل دي، چي تمیېز کله چېري له اسم ضمېر څخه واقع سوی و، نو د لومړي قسم یعني د ذات مذکوره تمیېز کېږي، نو د کافیه ملاصاحب رحمه الله وویل: چي له ضمېر څخه پر واقع سوي تمیېز سمدستي داسي حکم لګول، چي دا د ذات مذکوره تمیېز کېږي مناسب نه دی، بلکي په دې کي که څه تفصیل وسي، بیا حکم ولګول سي، نو مناسب به وي، هغه په دې ډول، چي د ضمېر مرجع که چېري معلوم و، نو دا له ذات مقدره څخه تمیېز واقع کېږي، ځکه چي په حقیقت کي ممیّز ضمېر نه وي، بلکي دده مرجع وي او هغه دلته مذکور نه ده او که چېري مرجع معلوم نه وي، نو په دې وخت کي تمیېز له ذات مذکوره څخه واقع کېږي، ځکه چي په دې حال کي ضمېر مبهم وي او هغه مذکور ده او له هماغه څخه تمیېز واقع سوی دی (ایضاح المطالب ص: ۷۶).

(فارسًا) داسم فاعل صېغه ده، له (فارسة) څخه مأخوذده په معنا د آس په سپرلۍ کي کامل او ماهر کېدل او کله چي دغه کمال په یو چا کې حیرانوونکي حد ته ورسېږي، نو د تعجب پر وخت ددغه نسبت د الله جل جلاله وطرفته کېږي، ځکه چي د عجائباتو خالق الله جل جلاله دی.

د (در) معنا ده شیدې، عربو په شیدو کي د ځان لپاره ډېره لویه ښېګڼه نغښتله، ځکه د دوی اکثره ژوند په شیدو تېرېدی، نو د (در) لپاره خیر لازم وي، نو ملزوم یې ذکر کړ او لازم یې ځیني مراد کړی دی، نو معنا داسي کېږي: د الله جل جلاله لپاره دی دغه خیر کثېر په اعتبار د سپرېدو.

او که چېري دا له (فراسة) څخه مشتق سي، نو معنا یې ده: ظاهر کتل، باطن معلومول، لکه چي شاعر ویلی دي:

**دلیک مضمون د لفافې له ظاهر نه څرګندېږي**

نو په دې صورت کي د مثال مذکور معنا داسي کېږي: چي د الله جل جلاله لپاره دی دا ده خیر کثېر په اعتبار د سپرتیا.

## نه اويايم (۷۹) درس

## د تميېز لپاره يوه قاعده اودوهم قسم لپاره دوې ضروري مسئلې

ثم ان كان اسمًا يصح جعله لِمَا انتصب عنه جاز ان يكون له و لمتعلقه و الا فهو لمتعلقه فيطابق فيهما ما قصد الا اذا كان جنسًا، الا ان يقصد الانواع وان كانت صفةً كانت له وطبقه واحتملت الحال ولا يتقدم التميز على عامله والأصح ان لايتقدم على الفعل خلافًا للمازنى والمبرّد.

**ترجمه:** بيا كه چېري تميېز داسي اسم وي، چي اطلاق يې پر منتصب عنه صحيح كېږي، نو جائز دي، چي له منتصب عنه او دده له متعلق څخه د يوه لپاره وبلل سي، كه نه نو د متعلق لپاره كېږي، بيا تميېز په دغو دواړو صورتونو كي له هغه سره مطابق كېږي، د كوم چي قصد سوى وي، خو كه چېري تميېز صفت وي، نو د منتصب عنه لپاره كېږي او دهغه مطابق كېږي او دحال احتمال هم پكي سته او تميېز پر خپل عامل نسي مخكى كېداى او صحيح مذهب دادى، چي تميېز پر فعل نسي مقدم كېداى، امام مازني او امام مبرّد رحمهما الله اختلاف كړى دى.

**تشريح:** د نن په سبقه كي لومړى د تميېز د دوهم قسم د دوو ضروري مسئلو او بيا د تميېز د دوو قسمونو لپاره يوه قاعده بيانېږي.

د تميېز د دوهم قسم لپاره لومړى مسئله:

ثم ان كان اسمًا يصح جعله لما انتصب عنه: په دې عبارت سره د كافيه ملاصاحب رحمه الله له تميېز سره د تړلې يوې مسئلې بيان كوي، چي كوم تميېز له منتصب عنه يعنى له مميّز سره خاص وي او كوم چي د منتصب عنه له متعلق سره خاص وي او په كوم كي د دواړو احتمال سته، مختصره خلاصه د ټولو داده، چي تميېز به يا اسم ذات وي، يا به اسم صفت وي، كه چېري ذات وي، نو پكى دواړه احتمالات سته او كه چېري اسم صفت وي، نو هغه صرف د مميّز له متعلق څخه تميېز واقع كېږي، براه راست د مميّز لپاره تميېز نسي جوړېداى.

د دې تفصيل دادى، چي كه چېري تميېز داسي اسم وي، چي حمل يې پر مميّز كېداى سي، يعنى اسم ذات وي او د مميّز لپاره خبر جوړېداى سي، نو دا د مميّز او

دده د متعلق دواړو لپاره جوړول جائز دي، لکه (طاب زيدٌ ابًا) وګوره! دلته (ابًا) تميېز دی، حمل يې پر مميّز يعني (زيد) صحيح دی، يعني د (زيدٌ) لپاره يې خبر جوړول صحيح دی، (زيدٌ ابٌ) ويل بلکل صحيح دي او د ده متعلق يعني د زيد د پلار (بکر) لپاره هم تميېز جوړېدای سي، ځکه چي دده لپاره هم دده خبر جوړول جائز دي، يعنی (بکرٌ ابٌ) ويل هم بلکل صحيح دي، لېکن قرينې ته په کتلو د مميّز او دده د متعلق لپاره تميېز جوړېږي، مثلا زيد له خپلو اولادونو سره ښه چلند او سلوک کوي، وويل سي (طاب زيدٌ ابًا)، نو دغه ښه چلند پر دې قرينه سوه، چي (ابًا) براه راست د (زيدٌ) تميېز دی، په دې صورت کي معنا داسي کېږي: چي زيد ښه دی د پلار کېدو په اعتبار سره.

او که چېري د زيد پلار له زيد سره ښه چلند کوي، وويل سي، چي (طابَ زيدٌ ابًا)، نو دده دپلار ښه چلند پر دې خبره قرينه ده، چي (ابًا) د زيد متعلق يعنی له بکر څخه تميېز واقع سوی دی، په دې صورت کي يې معنا داسي کېږي: چي زيد ښه دی د خپل پلار په اعتبار سره.

و الا فهو لمتعلقه: دا له (ثم ان كان اسمًا) څخه يو استثنائي صورت دی، چي که چېري هغه اسم داسي وي، چي پر مميّز يې حمل کول صحيح نه وي، يعنی اسم ذات نه وي، بلکي اسم صفت وي، نو صرف د منتصب عنه يعنی د مميّز له متعلق څخه تميېز جوړېږي، لکه (طاب زيدٌ دارًا يا طاب زيدٌ علمًا) غور وکړه! (زيدٌ دارٌ) او (زيدٌ علمٌ) نسي ويل کېدای، نو په دې صورت کي (دارًا او علمًا) د زيد له متعلق څخه ابهام ليري کړی دی، نو د هماغه د متعلق لپاره دی تميېز جوړېږي، نه چي پخپله د زيد لپاره.

## د تميېز د دوهم قسم لپاره دوهمه مسئله:

فيطابق فيهما ما قصد: دوهمه مسئله يې په لومړی مسئله پسې راوړه، چي په مذکوره دواړو صورتونو کي يعني که د تميېز حمل پر مميّز صحيح وي، يا نه وي، په هر حال کي تميېز له مميّز سره مطابق راوړل کېږي، يعني که مميّز مفرد

وي، نو تمیېز به هم مفرد وي او که تثنیه وي، که جمع وي، نو تمیېز به هم تثنیه او جمع راوړل کېږي.

د هغه تمیېز مثالونه کوم چې له ممیّز سره خاص وي، لکه (طاب زیدٌ نفسًا او طاب الزیدان نفسین او طاب الزیدون نفوسًا).

او د تمیېز مخصوص بالمتعلق مثالونه: (طاب زیدٌ دارًا، طاب الزیدان دارَین او طاب الزیدون دیارًا).

او دهغه تمیېز مثالونه، په کوم کې چې ددواړو احتمال وي مثلا (طاب زیدٌ ابًا، طاب الزیدان ابوَین او طاب الزیدون آباءًا).

**الا اذا کان جنسًا:** چې په عامه توګه خو تمیېز له ممیّز سره موافق راوړل کېږي، لېکن که چېرې تمیېز جنس وي، حمل يې پر ممیّز جائز وي، که نه وي او ممیّز مفرد، تثنیه، جمع، څرنګه چې هم وي، په هر صورت کې تمیېز مفرد راوړل کېږي، ځکه چې د جنس اطلاق پر قلیل او کثیر تولو کېږي، لکه (طاب زیدٌ علمًا او طاب الزیدان علمًا او طاب الزیدون علمًا).

**الا ان یقصد الأنواع:** که چېرې تمیېز جنس هم وي، لېکن د متکلم اراده دده انواع وي، نو په داسې صورت کې له ممیّز سره موافق راوړل کېږي، لکه (طاب زیدٌ علمًا او طاب الزیدان علمین او طاب الزیدون علومًا)، دا په هغه صورت کې ویل کېږي، کله چې د متکلم اراده دا وي، چې یو زید د علم د یوې نوعې په وجه ښه دی او بل زید ددوهمې نوعې په وجه ښه دی.

و ان کانت صفة کانت له وطبقه: داهم پر مخکنې عبارت (ثم ان کان اسمًا) عطف دی، په دې کې وايې: چې که چېرې تمیېز اسم ذات نه وي، بلکې اسم صفت یعنې له اسماء مشتقه څخه کوم یو وي، نو دی د منتصب عنه لپاره تمیېز جوړېږي، ځکه چې د صفت لپاره موصوف ضروري دی او مذکور یعنې منتصب عنه دخپل متعلق په مقابله کې زیات اولی او حقداره دی د موصوف جوړېدو لپاره.

له دي وروسته د کافیه ملاصاحب رحمة الله علیه ویلي دي: (وطبقه) یعني دغه تمیېز له خپل منتصب عنه سره په افراد، تثنیه اوجمع کي بلکل موافق راوړل کېږي، ځکه د موصوف او صفت تر مینځ مطابقت ضروري وي، لکه (طاب زیدٌ والدًا یا طاب زیدٌ فارسًا او طاب الزیدان فارسَین او طاب الزیدون فارسِین).

واحتملت الحال: مصنف رحمة الله علیه وایې، چي که تمیېز له اسماء مشتقه څخه کوم اسم وي، نو عامه قاعده خو داده، چي دی د منتصب عنه لپاره صفت جوړېږي، لېکن یو احتمال په ده کی داهم سته، چي دی د ماقبل منتصب عنه لپاره حال جوړېږي، لکه په (طاب زیدٌ فارسًا) کي (فارسًا) د (زیدٌ) لپاره تمیېز هم جوړېږي، په دې صورت کي عبارت داسي کېږي: (طاب زیدٌ من حیث انه فارسًا) او حال هم جوړېږي، په دې صورت کي عبارت داسي کېږي: (طاب زیدٌ حال کونه فارسًا).

فائده: د مصنف رحمة الله علیه د کلام له انداز څخه دا خبره جوتېږي، چي په داسي صورت کي د اسم صفت تمیېز جوړول راجح دي او حال جوړول یې هم که څههم جائز خو دي، لېکن مرجوح دي او چېري چي د حال له جوړولو څخه معنا فاسدېږي، نو بیا یې حال جوړول نه صحیح کېږي.

د تمیېز د دواړو قسمونو لپاره یوه ضروري قاعده:

**و لا یتقدم علی عامله**: دریېمه مسئله کومه چي د تمیېز له دواړو قسمونو سره متعلق ده، داده، چي تمیېز پر خپل عامل یعني پر ممیّز نسي مخکي کېدای، وجه یې داده، چي د تمیېز عامل اسم تام وي او هغه کمزوری قسم عامل دی، ولې که چېري تمیېز تر ده وروسته وي، نو پکي دا عمل کولای سي، لېکن که چېري تمیېز تر ده مقدم وي، نو بیا پکي عمل نسي کولای، نو د (عندی عشرون درهمًا یا کتبًا) پر ځای (عندی درهمًا عشرون کتبًا عشرون) نسي ویل کېدای.

**والأصح ان لا یتقدم علی الفعل**: لومړی قاعده چی کومه وه، یعني چي د تمیېز عامل اسم تاوي، نو د عامل د ضعېف کېدو په وجه پر ده تمیېز نسي مخکي کېدای، دا متفق علیه مسلک دی، لېکن چېري چي د تمیېز عامل فعل وی، نو که څه هم عامل قوي دی، لېکن بیا هم تمیېز دده لپاره د فاعل په منزله وي، نو

څرنګه چي فاعل پر خپل فعل نسي مخکي کېدای، دا راز تمیېز هم پر خپل عامل (فعل) نسي مخکي کېدای، دا د جمهورو مسلک دی.

**خلافًا للمازنی والمبرّد:** ابو عثمان بکر بن محمد بن عثمان المازني او دده شاګرد ابوالعباس المبرد دا دواړه حضرات وایي: چي په لومړي صورت کي خو موږ له تاسو سره یو، لېکن په دوهم صورت کي یعنی چیري چي د تمیېز عامل فعل صریح وي، نو زموږ قول دادی، چی تمیېز پر خپل عامل مخکي کېدای سي، ځکه چي فعل صریح قوي قسم عامل دی، نو که دده معمول پر ده مخکی وي، یا وروسته وي، په هر صورت دی عمل پکي کولای سي، لکه د (طاب زیدٌ نفسًا) پر ځای (نفسًا طاب زیدٌ) ویل د جمهورو په نزد ناجائز دي او ددغو دواړو حضراتو په نزد جائز دی.

## اتیایم (۸۰) درس
## داتم منصوب (مستثنیٰ) بیان

المستثنی متصلٌ و منقطعٌ، فالمتصل: هو المخرج عن متعدد لفظًا او تقدیرًا بالّا وأخواتها والمنقطع: المذکور بعدها غیر مخرج، وهو منصوبٌ اذا کان بعد الّا غیرالصفة فی کلام موجب، او مقدّمًا علی المستثنی منه، او منقطعًا فی الاکثر اوکان بعد خلا وعدا فی الاکثر او ماخلا وماعدا و لیس ولا یکون.

**ترجمه:** مستثنیٰ پر دوه قسمه ده، متصل او منقطع، بیا متصل هغه اسم دی، کوم چی له متعدد څخه په لفظي توګه، یا په تقدیري توګه د الّا او دهغې د اخواتو په ذریعه راوتلي وي او مستثنی منقطع هغه اسم دی، کوم چي تر الا وروسته سوی وي، لېکن له متعدد څخه نه وي راوتلی او هغه منصوب کېږي، کله چي تر الا غیر صفتي وروسته په موجب کلام کي وي، یا هغه پر مستثنی منه مخکي وي، یا مستثنی منقطع وي اکثره لغات یا د اکثره علماء نحو په نزد، یا وي تر خلا او عدا وروسته په اکثره استعمالاتو کي، یا هغه تر ماخلا، ماعد، لیس ا و لایکون وروسته واقع سوي وي.

**تشریح:** د نن په سبقه کي درې خبرې دي:

①: د مستثنی قسمونه او د هر يوه تعريف، ②: د څو ضروري اصطلاحاتو تفصيل، ③: د مستثنی لومړی اعراب يعنی د منصوب کېدو پنځه صورتونه.

## د مستثنی قسمونه او د هر يوه تعريف

**لومړی خبره:** د مستثنی قسمونه او د هريوه تعريف:

په ترکيبي اعتبار سره (المستثنی) مبتدا مؤخره ده او تر دې مخکي (ومنه) محذوف خبر مقدم دی، استثنی، يستثنی استثناء د استفعال له باب څخه دي، مصدري معنا يې ده (راوتل او را ايستل)او مستثنی کوم چي داسم مفعول يا اسم ظرف صيغه ده، معنا يې ده (راوتلی، يا د راوتلو ځای، يا ايستل سوی، يا د را ايستلو ځای).

او تر اصطلاحي معنا مخکي يې په دې پوه سه! چی مصنف رحمه الله عليه د مستثنی دوه قسمونه بيان کړي دي: ①: مستثنی متصل، ②: مستثنی منقطع.

د مستثنی متصل اصطلاحي معنا بيانوي، چي (هوالمخرج عن متعدد لفظًا او تقديرًا بالا وأخواتها) يعني مستثنی متصل هغه اسم ده، کوم چي د (الا) او دهغې د اخوات په ذريعه له متعدد څخه راوتلی وي، هغه متعدد شی که لفظي وي، لکه (جاءنی القوم الا زيدًا) دلته (القوم) شئ متعدد دی او په لفظ کي ذکر سوی دی او (زيدٌ) د لفظ (الا) په ذريعه ځيني ايستل سوی دی.

او که هغه متعدد شئ په لفظ کي نه وي، بلکي تقديري وي، لکه (ما جاءنی الا زيدٌ) دا په اصل کي (ماجاءنی احدٌ الا زيدًا) و، دلته (احدٌ) مستثنی منه په لفظ کي نسته، او زيد د (الا) په ذريعه ځيني ايستل سوی د ی.

تر دې وروسته د مستثنی منقطع اصطلاحي معنا بيانوي، چي (المذکور بعدها غير مخرج) يعني مستثنی منقطع هغه اسم دی، کوم چي هماغه راز تر (الا) او دهغې تر اخوات وروسته مذکور وي، لېکن له هماغه شئ متعدد څخه نه وی را ايستل سوی، بلکي هغه له مخکي لا وتلی وي، ځکه هغه له سره د مستثنی منه له جنس څخه هم نه وي، لکه (جاءنی القوم الا حمارًا) وګوره! دلته (حمارًا) د (الا) تر لفظ وروسته خو ده، لېکن له مخکني شئ متعدد يعنی (القوم) څخه نه

ده راوتلی، ځکه ایستل د هغه کېږي چې مخکې داخل وي (حمارًا) خو له مخکې څخه لا د قوم له افرادو څخه نه و، چې ځیني وایستل سي.

یادونه: د استثناء ټوټل حروف لس دي: (خلا، عدا، ماخلا، ماعدا، حاشا، لیس، لایکون، سوی، سواءَ اوغیر) ددې ټولو ماقبل ته مستثنی منه او مابعد ته یې مستثنی ویل کېږي او پخپله دې حروفو ته ادوات استثناء ویل کېږي.

**دوهمه خبره:** د څو ضروري اصطلاحاتو تفصیل:

مناسبه ده، چې د مستثنی په بحث تر شروع کولو مخکې د تمهید په ډول د څو ضروري اصطلاحاتو وضاحت وسي:

①: مستثنی: د دې تعریف سره له دوو قسمونو تېر سو، یعنی متصل او منقطع.

②: مستثنی منه: یعني هغه متعدد، له کوم څخه چې د استثناء د حروفو په ذریعه بعضي افراد ایستل سوي وي.

③: کلام موجب: کلام موجب هغه کلام دی، په کوم کي چې نفي او استفهام نه وي، لکه (قرأت الکتاب ا لا صفحة).

④: کلام غیر موجب: کلام غیر موجب هغه کلام دی، په کوم کي چې له نفي او استفهام څخه کوم یو وي، لکه (لا تقرأ الا کتابًا علمیًا).

⑤: مستثنی مفرغ: یعني هغه مستثنی تر کومه مخکې چې مستثنی منه مذکوره نه وي، لکه (ماجاءنی الا زید).

⑥: مستثنی غیرمفرغ: یعنی هغه مستثنی ترکومه مخکې چې مستثنی منه په لفظ کې ذکر وي، لکه (جاءنی القوم الا زیدًا).

(۷): الا صفتي: یعني د (الا) هغه کلمه کومه چې د (غیر) په معنا وي او تر دې وروسته واقع کېدونکی اسم مستثنی نه وي، بلکې د خپل ماقبل لپاره صفت واقع سوی وي، لکه (لو کان فیهما آلهة الا الله لفسدتا).

(۸): الا غیر صفتي: یعني د (الا) هغه کلمه تر کومه وروسته واقع کېدونکی اسم چې مستثنی وي، لکه (جاءنی القوم الا زیدًا).

**درېیمه خبره:** د مستثنی لومړی اعراب یعني د منصوب کېدو پنځه صورتونه:

وهو المنصوب اذا کان بعد الا غیر الصفة: مصنف (علامه ابن حاجب رحمه الله) چي کله د مستثنى له تقسیم او تعریف څخه فارغ سو، اوس یې اعراب بیانوي، له (وهومنصوبٌ) څخه تر (ولیس و لایکون) عبارت پوري مصنف رحمه الله د مستثنى لومړی اعراب یعنی د منصوب کېدو پنځه صورتونه بیانوي.

## د منصوب کېدو لومړی صورت:

اذا کان بعد الا غیرالصفة فی کلام موجب: یعني کله چي مستثنى په کلام موجب کي وی، تر الا غیرصفتیه وروسته واقع وی، لکه (جاء نی القوم الا زیدًا).

## د منصوب کېدو دوهم صورت:

او مقدمًا علی المستثنی منه: یعني کله چی مستثنى پر مستثنى منه مخکي وي، لکه (ماجاءنی ا لا زیدًا احدٌ).

## د منصوب کېدو درېیم صورت:

او منقطعًا فی الأکثر: چي د نحوي د اکثرو علماؤ په نزد چي مستثنى منقطع وي، نو منصوبه به هم وي، هغه که په کلام موجب کي وي، لکه (جاءنی القوم الا حمارًا)، که په کلام غیر موجب کي وي، لکه (ماجاءنی القوم ا لاحمارًا).

**فائده ①:** په مذکوره درې سره صورتونو کي د مستثنى منصوب ویل ځکه واجب دي، چي دا په فضله کېدو کي له مفعول به سره مشابه دی او مفعول به چونکه منصوب وي، نو دا به هم منصوب وي او دوهمه وجه داده، چي په دغو ځایونو کي مستثنى د خپل ماقبل لپاره بدل نسي کېدای، د دې لپاره چي د مبدل منه اعراب دېته ورکول سي ا و نه تر دې مخکي کوم حرف جر راتلای سي او نه کوم اسم مضاف، د دې لپاره چي دا مجروره وویل سي، نو د دې منصوب ویل متعین کړل سو.

**فائده ②:** د کافیه ملاصاحب رحمه الله په (فی الاکثر) عبارت سره دا خبره معلومه کړې، چي په دې کي اختلاف دی، یوه طرفته د نحوي جمهور علماء دي، د کومو چي مسلک ذکر سو او دوهم طرفته علماء بني تمیم دي، دا حضرات

وایې، چې پر مستثنی منقطع سمدستي دا حکم لګول چې دا به منصوب وي صحیح نه ده، ځکه چې مستثنی منقطع پر دوه قسمه ده:

①: لومړی قسم دادی، چې د مستثنی منه حذفول جائز وي، لکه (ماجاءنی القوم الاحمارًا) دلته د (القوم) په حذف کېدو سره په معنی کې هېڅ خرابي نه راځي، لکه چې مستثنی متصل کله په کلام موجب کې وي، نو لکه څرنګه چې د هغې مرفوع (دبدلیت پر بنا) او منصوب (د مستثنی کېدو پر بنا) ویل جائز دي، لکه (ماجاء نی القوم الا زیدًا) او (ماجاءنی الا زیدًا) بلکل همداسې دی، دا هم مرفوع (د بدلیت پر بنا) او منصوب (د مستثنی کېدو پر بنا) ویل جائز دي.

②: چیرې چې د مستثنی منه حذفول جائز نه وي، لکه (لاعاصم الیوم من امر الله الا من رحم)، دلته (عاصم) مستثنی منه دی، چې حذفول یې ناجائز دي، ځکه چې دا دلاء نفي جنس اسم دی او دا حذف کېدای نسي، نو (من رحم) کوم چې مستثنی دی، دا محلاً منصوب کېږي او منصوب ویل یې صرف جائز نه، بلکې واجب دي.

**د منصوب کېدو څلورم صورت:**

او کان بعد خلا وعدا فی الأکثر: چې تر (خلا او عدا) وروسته هم د اکثره علماء نحو په نزد مستثنی په وجوبي ډول منصوبه کېږي، لکه (جاءنی القوم خلازیدًا وعدا زیدًا).

دا حضرات ددغه د منصوب کېدو وجه دا ښیي، چې (خلا او عدا) دواړه فعلونه دي، لکه (خلا یخلوخلوًا او عدا یعدو عدوًا) د نصرینصر له باب څخه ناقص واوي دي، په معنا د تجاوز کولو او (هو) ضمیر پکې فاعل دی، کوم چې د مخکنې فعل د مصدر وطرفته راجع دی او مستثنی دده لپاره مفعول به دی، نو لکه څرنګه چې د مفعول به منصوب کېدل واجب دي، دا راز دده منصوب کېدل هم واجب دي.

د کافیه ملا صاحب (فی الأکثر) قید لګولی دی، ځکه چې د ځینې علماء نحو په نزد (خلا او عدا) دواړه حرف جر دي، نو د دوی په نزد پر دغو دواړو ځایونو

مستثنى مجروره کېږي، لکه (جاءني القوم خلا زيدٍ وعدا زيدٍ) ليکن دوی په مقابله کي د اکثره علماء نحو مذهب ځکه راجح دی، چي په (خلا اوعدا) کي د فعليت اعتبار زيات دی په نسبت د حرفيت، ځکه چي پر دغو دواړو کله کله (ما)مصدريه هم داخلېږي او قاعده ده، چي (مامصدريه) پر فعل داخلېږي، پر حرف کله هم نه داخلېږي، نو دا خبره معلومه سوه، چي دا دواړه فعل دي، حرف نه دي.

## د منصوب کېدو پنځم صورت:

او ماخلا و ماعدا وليس ولايكون: پنځم ځای چېري چي د مستثنى منصوب کېدل واجب وي دادی، چي مستثنى په (ماخلا، ماعدا، ليس اولايكون) کي ترکوم يوه وروسته واقع سوي وي، لکه (جاءني القوم ماخلا زيدًا وماعدا زيدًا) د عبارت تقدير داسي کېږي: (جاءني القوم خلا مجيئهم زيدًا، يا جاءني ا لقوم خلاالجائي منهم زيدًا) وقس عليه مثال عدا.

تر (ماخلا او ماعدا) وروسته مستثنى ځکه منصوب کېږي، چي دا دواړه فعل دي، ځکه چي په شروع کي يې (مامصدريه) راغلې ده او ضمېريې فاعل دی او مستثنى مفعول به ده، نو د مفعوليت پر بنا دده منصوب کېدل واجب دي اوبيا پوره جمله فعليه له (القوم) څخه د حال واقع کېدو په وجه محلًا منصوب کېږي (کما مرت امثلته آنفًا).

او تر (ليس او لايكون) وروسته مستثنى ځکه منصوب کېږي، چي دا دواړه له افعال ناقصه څخه دي او د استثناء په بحث کي ددوی فاعل د تل لپاره ضمېر مستتر وي، کوم چي د ماقبل فعل د اسم فاعل وطرفته راجع دی او مستثنى يې خبر کېږي او د دوی خبر چونکه منصوب وي، نو مستثنى هم منصوب کېږي او بيا دا دواړه له خپل اسم او خبر سره له مستثنى منه څخه د حال واقع کېدو په وجه محلًا منصوب کېږي، لکه (جاءني القوم ليس زيدًا) د دې عبارت تقدير داسي کېږي: (جاءني القوم ليس الجائي منهم زيدًا) او جاءني القوم لا يكون زيدًا) د دې تقديري عبارت داسي کېږي: (جاءني القوم لايكون الجائي منهم زيدًا).

يواتيايم (٨١) درس

## د مستثنی د اعراب دوهم او دریم صورت

ویجوز فیه النصب، ویختارالبدل فی مابعد (الا) فی کلام غیرموجب و ذُکرَ المستثنی منه، مثل: مافعلوه الا قلیلٌ و الا قلیلًا، ویعرب علی حسب العوامل. اذا کان المستثنی منه غیر مذکورٍ وهو فی غیرالموجب، لیفید مثل: ما ضربنی الا زیدٌ، الا ان یستقیم المعنی، مثل: قرأت الا یوم کذا ومن ثم لم یجز ما زال زیدٌ الا عالمًا.

**ترجمه:** او جائز دی په دې کې نصب او بدل جوړول مختاره دي، په دې صورت کې چې کله مستثنی تر الا وروسته په کلام غیرموجب کې وي او مستثنی منه مذکوره وي، لکه (مافعلوه الا قلیلٌ او الا قلیلا) او دېته اعراب ورکول کېږي د عواملو پر مقتضا باندې، کله چې مستثنی منه مذکوره نه وي، په داسې حال کې چې مستثنی په کلام غیر موجب کې وي، د دې لپاره چې هغه صحیح فائده ورکوي، لکه: (ماضربنی الا زیدٌ)، خو کله چې معنا صحیح وي، لکه (قرأت الا یوم کذا) او له همدې وجې جائز نه دی (مازال زیدٌ الا عالمًا).

**تشریح:** د نن په سبقه کې د مستثنی دوهم او دریم اعرابي صورتونه بیانېږي:

**د مستثنی د اعراب دوهم صورت: نصب جائز او بدل غوره او مختاره:**

ویجوز فیه النصب ویختار البدل: مصنف رحمه الله علیه د مستثنی د اعراب دوهم صورت بیانوي، چې مستثنی کله په کلام غیرموجب کې تر (الا) وروسته واقع سوې وي او مستثنی منه مذکوره وي، نو دا مستثنی د استثنا پر بنا منصوب ویل هم جائز دي، خو د بدلیت پر بنا د مبدل منه په اعراب ویل یې زیات اولی او غوره دي، لکه (مافعلوه الا قلیلٌ منهم) د استثناء پر بنا منصوب یعني (مافعلوه الا قلیلاً) ویل هم جائز دي، لېکن دبدلیت پر بنایې مرفوع ویل اولیٰ او غوره دي، یعني (قلیل) د (فعلوه) د ضمیر فاعل لپاره بدل البعض جوړېږي، ځکه چې تر (الا) وروسته که چېرې بدل وي، نو هغه بدل البعض جوړېږي.

په دې قسم کې دوې وجې ځکه جائز دي، چې د نصب په صورت کې مستثنی متصل وي او هغه په فضله کېدو کې له مفعول به سره د مشابه کېدو پر بنا منصوبه کېږي او په دوهم صورت کې د مستثنی منه لپاره بدل البعض کېږي او

په بدل او مبدل منه دواړو کي مقصود بدل وي او همدا وجه ترلوموړی وجه راجح ده، د راجح کېدو وجه یې داده، چي دبدل په صورت کي اعراب بیله کوم واسطي راځي او د مستثنی په صورت کي د عامل او معمول ترمینځ (الا) واسطه وي او دا ښکاره خبره ده، چي تر اعراب بالواسطه اعراب بیله واسطي غوره او اولیٰ دی، مصنف رحمه الله چي کوم مثال راوړی، هغه د رفع دی، د جر مثال داسي جوړېږي: (ما مررت باحدٍ الا زیدٍ) او د نصب صورت داسي جوړېږي: (ما رأیت احدًا الا زیدًا)، په حالت نصبي کي دبدل او مستثنی دواړو اعراب یو رنګه کېږي، لېکن اعتباري فرق یې سته، یعني اعراب که چېري بالواسطه سي، نو د استثنا پر بنا منصوب کېږي او که چېري بیله واسطې سي، نو د بدلیت پر بناء منصوب کېږي.

د کافیه ملاصاحب رحمه الله د اعراب د دغه قسم لپاره درې شرطونه بیانوي:

①: فی مابعد الا، یعنی مستثنی به تر (الا) وروسته واقع وي، په دې سره یې له هغې مستثنی احتراز وکړ، چي د (الا) تر اخوات وروسته واقع وي، ځکه چي د هغې لپاره دا اعراب نه دی، بلکي له هغو څخه د ځینو (خلا، عدا وغیره) حکم بیان سوی دی او د ځینیو دا را روان دی.

②: فی کلام غیرموجب: یعني مستثنی به په کلام غیرموجب کي وي، په دې سره یې له هغې مستثنی څخه احتراز وکړ، کومه چي په کلام موجب کي وي، ځکه چي د هغې لپاره دا حکم نه دی، بلکي په هغې کي نصب واجب وي (کمامر سابقًا).

③: و ذکر المستثنی منه: دریم شرط یې دا لګولی، چي مستثنی منه به مذکوره وي، او چېري چي مستثنی منه مذکوره نه وي، یعنی مستثنی مفرغ وي، نو دهغې اعراب له عواملو سره سم راځي (کما یأتی امامنا فی الدرس القادم ان شاء الله تعالی).

و یعرب علی حسب العوامل اذا کان المستثنی منه غیرمذکور وهو فی غیرالموجب:

دا د مستثنی د اعراب دریم صورت دی، کوم چي په مذکوره عبارت کي مصنف

رحمه الله ذکر کړی دی، دلته د (حَسَبَ، مقتضی) په معنی دی او که د (علی، باء) په معنی سي، نو عبارت داسي جوړیږي: (و یعرب بمقتضی العامل) مطلب دا چي په کلام غیر موجب کي چي کله مستثنی منه مذکوره نه وي، نو دېته اعراب د عامل له خوښې سره سم ورکول کېږي، یعنی که چېري عامل د رفع تقاضا کوله، نو دېته رفع ورکول کېږي، لکه (ماجاءنی الا زیدٌ) او که عامل د نصب غوښتنه کوله، نو دېته نصب ورکول کېږي، لکه (ما رأیت الا زیدًا) او که یې د جر تقاضا کوله، نو دېته جر ورکول کېږي، لکه (ما مررت الا بزید).

مصنف رحمه الله د مذکوره اعراب لپاره دوه شرطونه بیانوي:

**لومړی شرط:**

اذا کان المستثنی منه غیر مذکور: یعنی مستثنی ته دغه اعراب هغه مهال ورکول کېږي، کله چي مستثنی منه مذکوره نه وي، یعنی مستثنی مفرغ وي، لېکن که چېري مستثنی منه مذکوره وه، نو هغه به له دوو حالونو خالي نه وي، یا به په کلام موجب کي وي، یا به په کلام غیر موجب کي وي، د دغو دواړو صورتونو حکم تېر سوی دی، چي په لومړي صورت کي نصب ویل واجب دی او په دوهم صورت کي نصب جائز او بدل مختار او غوره دی.

**دوهم شرط:**

و هو فی غیرالموجب: دوهم شرط یې دا لګولی، چي د مذکوره اعراب لپاره د مستثنی په کلام غیر موجب کي کېدل شرط دی، ددې وجه پخپله مصنف رحمه الله په (لیفید) عبارت کي بیان کړې ده، یعني دا شرط ځکه ورسره لګول سوی، چي دا کلام صحیح او مفید جوړ سي او سامع ته هم د کلام صحیح فائده ورسېږي، لکه (ماضربنی الا زیدٌ) په دې مثال سره بلکل صحیح معنا فائده کېږي، ځکه چي دا ممکن ده، چي متکلم دې له زید پرته هېچا هم نه وي وهلی، ددې پر خلاف که چېري مستثنی مفرغ په کلام موجب کي وی، لکه (ضربنی الا زیدٌ)، نو سامع ته د متکلم ددې کلام صحیح فائده نه رسېږي، ځکه چي دا خو کېدای نسی، چي متکلم دې له زید پرته نور ټول انسانان وهلي وي، ځکه ډېر انسانان د متکلم تر

پیدا کېدو مخکې تېر سوي دي او فناء سوي دي، او ډېر انسانان د متکلم تر وفات کېدو وروسته دنیا ته راځي، نو بیا دا څرنګه ممکن ده، چې متکلم دی له زید پرته نور ټول انسانان وهلي وي، نو دا دوهم شرط د معنی د صحیح کېدو لپاره لګول سوی دی.

الا ان یستقیم المعنی: دا د مصنف رحمه الله له دې عبارت (وهو فی غیرالموجب) څخه یو استثنائي صورت بیانوي، چې مستثنی مفرغ په کلام موجب کې نسي واقع کېدای، ځکه چې دا خبره تېره سوه، چې په داسي حالت کې د معنی خرابي لازمېږي، لېکن چیري چې د معنی خرابي نه لازمېږي، نو هلته د مستثنی مفرغ په کلام موجب کې واقع کېدل جائز دي، مثلا هلته کومه داسې قرینه وي، چې پر دې خبره دلالت کوي، چې له مستثنی منه څخه بعض متعین افراد مراد دي، لکه چې ددې لپاره مصنف رحمه الله مثال راوړی دی: (قرأت الا یوم کذا)، دلته له مستثنی منه څخه ځیني متعین افراد مراد دي، مثلا یو طالب العلم ووایې: (قرأت کل الأسبوع) ما پوره هفته (اونۍ) قراءت ووایه، بل یو ووایې: (قرأت الا یوم الجمعة) ما له جمعې پرته پاتې نوره اونۍ قراءت ووایه او پر دې وروستني کلام قرینه د مخکني طالب العلم کلام دی، نو د دوهم طالب العلم په وینا کې (کل الاسبوع) مستثنی منه محذوف ده.

ومن ثم لم یجز مازال زیدٌ الا عالمًا: دا پر مخکنۍ مسئله تفریع وړاندي کوي، چې مستثنی مفرغ په کلام موجب کې هغه مهال واقع کېږي، کله چې یې معنی صحیح وي، که نه نو په کلام موجب کې نه واقع کېږي، ځکه چې مصنف رحمه الله یو مثال راوړی دی، چې له همدې وجې نو (مازال زیدٌ الا عالمًا) ویل صحیح نه دي، ځکه چې (مازال زیدٌ) مستثنی مفرغ ده او (الا عالمًا) مستثنی په کلام موجب کې واقع سوې ده، دا ځکه کلام موجب دی، چې (ما) هم نافیه ده او (زال) هم د نفې لپاره ده او قاعده ده چې نفې پر نفې داخله سي، نو اثبات فائده کوي، نو د دې معنا داسې کېږي: (ثبت زیدٌ دائمًا علیٰ جمیع الصفات الا علی صفة العلم)، یعنی زید د تل لپاره د علم له صفت پرته په نورو ټولو صفاتو سره

متصف وي او د دې باطلېدل خو ښكاره دي، ځكه چي د زيد لپاره د ټولو صفاتو (ممكنه، غيرممكنه، متضاد او غير متضاد) ثابتېدل محال دي.

## دوه اتيايم (۸۲) درس

## يوه قاعده او پر هغې د يوې شبهې د له مينځه وړلو بيان

واذا تعذّرالبدل على اللفظ فعلى الموضع مثل: ماجاءنى من احدالا زيدٌ، ولا احد فيها الا عمرو، وما زيدٌ شيئًا الا شئٌ لا يُعبأبه، لأن (من) لا تزاد بعد الاثبات، و(ماولا) لا تقدران عاملتين بعده، لأنهما عملتا للنفى وقد انتقض النفى بالا، بخلاف ليس زيدٌ شيئًا، لأنهما عملت للفعلية، فلا أثر فيها لنقض معنى النفى لبقاء الأمر العاملة هى لأجله ومن ثم جاز ليس زيدٌ الا قائمًا وامتنع ما زيدٌ الا قائمًا.

**ترجمه:** او كله چي د لفظ په اعتبار بدل جوړېدل متعذر (محال) سي، نو د محل په اعتبار كېږي، لكه (ماجاءنى من احدالا زيدٌ، ولا احد فيها الا عمرو، وما زيدٌ شيئًا الا شئٌ لا يُعبأبه)، ځكه چي (من) تر اثبات وروسته نسي راتلاى او ما ولا د عامل كېدو په صورت كى تر اثبات وروسته نسي مقدركېداى، ځكه چى دا دواړه د نفې له وجې عمل كړى و او يقينًا د الا په وجه نفي له مينځه ځي، په خلاف د (ليس زيدٌ شيئًا الا شيئًا)، ځكه چي ليس د فعل كېدو په وجه عامل ده او د نفى د معنى په له مينځه وړلو دده په عمل كي هېڅ اثر نه كېږي، ځكه چى هغه امرتر اوسه باقي دى، د كوم په وجه چي ليس عمل كاوه او له همدې وجې جائز دي (ليس زيدٌ الا قائمًا) او منع دى (ما زيدٌ الا قائمًا).

**تشريح:** د نن په سبقه كي يوه قاعده او د يوې شبهې د ازالې بيان كېږي:

له و اذا تعذّر البدل) عبارت څخه تر (ما زيدٌ الا قائمًا) پورې مصنف رحمه الله يوه قاعده بيانوي، په اصل كي ددې قاعدې تعلق د مستثنى د اعراب له دوهم صورت سره دى، هلته موږ ويلې وه، چي (ويجوز فيه النصب ويختار البدل فيما بعد الا فى كلام غير موجب وذكر المستثنى منه) يعنى په كلام موجب كي چي مستثنى منه تر (الا) وروسته واقع وي، نو د دې منصوب ويل هم جائز دى،

لېکن د مستثنی منه له لفظ څخه د بدل کېدو پر بنا د مبدل منه په اعراب سره ویل یې اولیٰ او مختاره دي، اوس دلته دا قاعده بیانوي، چې چېرې مستثنی د مستثنی منه له لفظ څخه بدل کېدل متعذر وي، نو هلته د مستثنی منه له محل څخه دا بدل جوړېږي، د دې لپاره چې په اولیٰ تر وسه پورې عمل وسي، لکه (ماجاءنی من احد الا زیدٌ ولا احد فیها الا عمرو ومازیدٌ شیئًا الا شئ لا یُعبأبه) په دغو ټولو مثالونو کې د (الا) مابعد د ماقبل مستثنی منه له محل څخه بدل جوړېږي.

پر مذکوره قاعده دلیل:

لأن مِن لا تزاد بعد الاثبات: په دې عبارت کې مصنف رحمة الله علیه له لفظ څخه د بدل د تعذر وجه او دلیل بیانوي، چې په لومړی مثال (ماجاء نی من احد الا زیدٌ) کې که چېرې مونږ (الا زیدٌ) له (من احد) څخه بدل ومنو، نو د (من) استغراقیه په کلام موجب کې راتلل لازمېږي، کوم چې بالاتفاق ناجائز دی او دا ځکه کلام موجب دی، چې کله په یوه جمله کې تر نفې وروسته (الا) راسي، نو له هغې څخه د نفې معنا ختموي، او د نفې معنا چې کله ختم سي، نو کلام موجب کېږي، یا په بل عبارت داسې هم ویل کېدای سي، چې دلته د (من) داخلېدل پر زید لازمېږی او زید د اثبات په محل کې دی، ځکه چې تر (الا) مخکې کله نفي وي، نو تر هغې وروسته اثبات وي او زید چونکه تر دې وروسته دی، نو د اثبات په محل کې کېدل یې ثابت سو.

او بدل چونکه د عامل د تکرار په حکم کې وی، ځکه چې تقدیري عبارت یې داسې کېږي: (ماجاءنی من احد الا زیدٍ) او معنی یې داسې کېږي: (جاءنی من زیدٍ).

د دې د عدم جواز یوه وجه خو داده، چې (من) په کلام موجب کې راغلی دی، کوم چې ناجائز دی او دوهمه وجه یې داده، چې پر فرد واحد (زید) د (من) استغراقیه داخلېدل لازمېږی او دا هم ناجائز دی، ځکه چې (من) استغراقیه تل پر کلي داخلېږي، نو له دغو محظوراتو (خنډونو) څخه د ځان ساتنې لپاره (زید) په اعتبار د محل بدل و بلل سو او (من احد) چونکه محلا د فاعلیت پر بنا مرفوع دی، نو (زید) هم مرفوع وویل سو.

دوهم مثال یعني (لا احد فیها الا عمرو) په دې کي عمرو د (احدٌ) له محل څخه بدل دی او (احدٌ) چونکه د ابتداء پربناء مرفوع دی، نو (عمرو) هم د بدلیت پربناء مرفوع سو.
او درېیم مثال هم (ما زیدٌ شیئًا الا شئٍ لا یُعبأبه) په دې کی (شئٍ) د مخکني (شیئًا) له محل څخه بدل واقع کېږي او هغه (شیئًا) چونکه د خبریت پر بناء محلا مرفوع دی، نو (شئٍ) هم مرفوع سو.
په دې دواړو مثالونو کي که چېري مستثنی د مستثنی منه پر لفظ حمل سي، نو بدل چونکه د عامل د تکرار په حکم کی وي، نو که چېري موږ وغواړو چي (ماولا) تر بدل مخکي مقدر ومنو، نو د دې لپاره موږ له مصنف رحمه الله علیه څخه پوښتنه کوو، چي صاحبه! آیا داسي کول جائز دي؟، نو راته به ونه وایې، چي هوکې!، ځکه چي قاعده ده، چي (ما و لا تقدران عاملتین بعده) یعني (ما ولا) چي عامل وي، تر اثبات وروسته مقدر کېدای نسی، دلیل یې دادی، چی (لأنهما عملتا للنفی) یعني دغو دواړو ځکه عمل کړی، چی په دوی کي د نفي معنا وه، لیکن (وقد انتقض النفی بالا) یقینًا هغه نفي د الا په ذریعه ختمه سوه، یعنی کله چي (الا) حرف استثناء تر ده وروسته نفي له مینځه یووړه، نو ګواکی چی له دې څخه دعمل قوت ختم سو او کله چي د عمل قوت ختم سو، نو به دوهم مثال کي (عمرو) او به درېیم مثال کي (شئٍ) د مستثنی منه پر لفظ په حمل کولو او له هغه څخه د بدل منلو پر بنا منصوب نسي ویل کېدای، بلکي (عمرو) د (احدٌ) پر محل په حمل کولو مرفوع ویل کېږی او (شئٍ) د (شیئًا) له محل څخه بدل کېږي او د خبریت پر بنا مرفوع ویل کېږي.

**یوه شبهه او د هغې ازاله:**

بخلاف لیس زیدٌ شیئًا الا شیئًا: په دې عبارت سره مصنف رحمه الله علیه د یوې شبهې ازاله کوي، شبه دا کېدای سي، چي (ما اولا) دواړه مشابه دي له (لیس) سره، نو (لیس) مشبه به سو او قاعده ده، چي په اکثري ډول مشبه به اولیٰ وي په نسبت د مشبه، نو اوس د یوه طالب العلم په ذهن کي دا شبه کېدای سي، چی له (ما اولا) څخه د نفي د معنا د ختم کېدو په وجه د دوی عمل هم نه پاتېږي، نو کله چی مشبه

کومه چې ادنی' ده، ددې داحالت دی، نو مشبه به یعني (لیس) کومه چې اعلی ده، ددې خو په طریقه اولی' داسي حالت کېږي، یعني له (لیس) څخه که چېرې د نفي معنا ختم سي، نو عمل یې هم نه پاتېږي؟

د دغې شبهې د له مینځه وړلو لپاره مصنف رحمة الله علیه وویل: (بخلاف لیس زیدٌ شیئًا الا شیئًا) یعني په خلاف د (لیس) که چېرې له لیس څخه دنفي معنا ختم هم سي، نو بیا هم دا په بدل کی عمل کوي.

د دې وجه پخپله د کافیه ملاصاحب رحمة الله علیه را ښیي، چې (لأنها عملت للعفلية) یعني ځکه چې (لیس) د نفي د معنی د شتون له وجې عمل نه کوي، بلکي د فعل کېدو په وجه عمل کوي، نو (الا) حرف استثناء که څه هم د (لیس) معنی نفي ختم کړې، لېکن (فلا اثر فیها لنقض معنی النفی) یعني د نفي د معنی له ختمېدو سره، سره ددې عمل نه ختمېږي، ولې؟ (لبقاء الأثر العاملة هی لاجله) یعني دنفي معنی که څه هم له لیس څخه ختم سي، لېکن له کومې وجې چې هغه عمل کاوه، هغه اوس هم باقي ده او هغه ده کلمه دفعل کېدل او ددې فعل کېدل اوس هم باقي دي، ځکه چې (شیئًا) تر (الا) مخکي د (شیئًا) له لفظ څخه په بدل کېدو منصوب ویل کېږي.

ومن ثم جاز لیس زیدٌ الا قائمًا: په دې سره پر مخکني اصل د نفي او اثبات په اعتبار یوه تفریع بیانوي، چې (لیس زیدٌ الا قائمًا) ویل خو صحیح دي، ځکه چې د (الا) په وجه د (لیس) معنی نفي که څه هم ختم سوې، لېکن (لیس) د معنی نفې په وجه عامل نه وه، بلکي د فعلیت په وجه وه، او فعلیت تر اوسه باقي دی.

(وامتنع ما زیدٌ الا قائمًا) چی (مازیدٌ الا قائمًا) ویل صحیح نه دي، د دې وجه تېره سوې ده، چې (ما اولا) د معنی نفي په وجه عامل دي، نو کله چې (الا) له (ما) څخه نفې ختم کړي، نو ددې عامل کېدل هم ختم سوه، ځکه نو (ما زیدٌ الا قائمًا) ویل صحیح نه سو.

## دري اتيايم (۸۳) درس
## د مستثنى د اعراب څلورم صورت

و مخفوضٌ بعد غير و سوىٰ و سواء و بعد حاشا فى الأكثر واعراب (غير) فيه كاعراب المستثنى بالاعلى التفصيل.

**ترجمه:** او مستثني چي تر غير، سوى او سواء وروسته وي مجروره وي، او تر حاشا وروسته په اکثره استعمالاتو کي او د غير اعراب د اشتثناء په باب کي د مستثنى په الا د اعراب په ډول دى، د هماغه تفصيل مطابق کوم چي تېر سو.

**تشريح:** وروره! د نن په سبقه کي صرف دوې خبرې دي:

①: د مستثنى د اعراب څلورم قسم، ②: د غير اعراب.

**لومړۍ خبره:** د مستثنى د اعراب څلورم قسم:

و مخفوضٌ بعد غيرٍ وسِوى وسواءَ: د مستثنى د اعراب څلورم صورت بيانوي، چي مستثنى که چېري تر (غير، سِوىٰ او سواء) وروسته راغلې وه، نو په اتفاق سره مجروره کېږي، ځکه چي دا درې سره مضاف جوړېږي او مستثنى مضاف اليه، نو د مضاف اليه کېدو په وجه مستثنى مجروره کېږي.

له دغو دريو پرته د اکثر علماء نحو مذهب دادى، چي که چېري مستثنى تر (حاشا) وروسته وي، نو هم مجروره کېږي، لېکن مجرور بالاضافت نه، بلکي مجروره بحرف الجر کېږي، ځکه چي دا حضرات وايې، چي (حاشا) له حروف جاره څخه ده، لکه (ضرب القوم عمروا حاشازيد) اى برأه الله سبحانه وتعالى عن ضرب عمرو) يعني الله ﷻ هغه د عمرو له وهلو وساتى.

ليکن د نحو ځيني علماء مثلا امام مبرد دا فعل بولي، ځکه هغه وايې: چي دا د(جانب) په معنا دى، لکه په دعاء کي چي موږ وايو: (اللّٰهمّ اغفرلى ولمن سمع دعائي حاشاالشيطان) او ددې معنا داده: چي مستثنى دى الله ﷻ پاک او برى کړي له هغه شي څخه کوم چي د مستثنى منه وطرفته منسوب دى، نو د دوى په نزد که چېري مستثنى تر (حاشا) وروسته وي، نو د هغې مستثنى په څېرمنصوب

کېږي ، کومه چې تر (ماخلا او ماعد) وروسته وي، د کوم چې به پوره تفصیل د لومړي صورت په پنځم مقام کې ملاحظه کړئ.

### د غیر اعراب

**دوهمه خبره: د غیر اعراب:**

واعراب غیر فیه کاعراب المستثنی بالا علی التفصیل: د کافیه ملاصاحب رحمه الله چې کله د مستثنی له اعراب څخه فارغ سو، نو اوس د (غیر) د اعراب بیان کوي، لیکن پر دې به یو طالب العلم ته سوال پیداکېدی، چې د استثناء له ادواتو څخه صرف د (غیر) داعراب بیانولو ضرورت ولي پېښ سو، یا خو به یې د ټولو اعراب بیاناوه، یا به یې د (غیر) اعراب هم نه بیاناوه، چې ټول سره برابر سي؟

د دې جواب دادی، چې ددې ضرورت ځکه پېښ سو، چې دا اسم متمکن ده او اسم متمکن اعراب ته ضرورت لري، په خلاف د نورو اخواتو دغیر، چې په هغو کې اکثره مبني دي او د ځینو لپاره اعراب له مخکې لا متعین دی، مثلاً (الا) د حرف کېدو په وجه مبني ده او (خلا، عدا، ماخلا، ماعدا، لیس) د فعل ماضي کېدو په وجه مبني دي او مبني اعراب نه قبلوي، له دوی پرته (سوی او سواء) لازم النصب دي، لکه چې د ځلورمې خبرې په ضمن کې به راسي او (لایکون) فعل مضارع ده، پر کومه چې د عواملو په حسب اعراب راځي او (حاشا) هم د اکثره علماء نحو په نزد له حروف جاره څخه دی، نو دا مبني سو او مبني اعراب نه قبلوي، ځکه نو د کافیه ملاصاحب رحمه الله مناسب وبلل، چې صرف د (غَیر) اعراب بیان کړل سي، لکه د کافیه ملاصاحب رحمه الله چې وویل: چې (واعراب غیر فیه کاعراب المستثنی بالا علی التفصیل) یعني کلمه د (غیر) چې کله د استثناء په باب کې مستعمل سي، نو اعراب یې د مستثنی په (الا) د اعراب په ډول دی، یعني په کومو صورتونو کې چې مستثنی تر (الا) وروسته واقع وي او پر هغې کُوم اعراب راځي، که چېرې په همدغو صورتونو کې د (الا) پر ځای (غیر) راسي، نو هماغه د مستثنی اعراب پر (غیر) راځي او مستثنی د (غیرَ) په وجه مجروره کېږي، مثلاً: مستثنی په کلام موجب کې تر (الا) وروسته واقع

وي، نو منصوب کېږي، نو د (الا) پر ځای که چېري (غیر) راسې، نو هغه مستثنی مجروره کړي ددې اعراب پخپله قبلوي، لکه (جاءنی القوم غیرَ زیدٍ).
دا راز چي کله مستثنی منقطع تر (الا) وروسته واقع سي، نو منصوب کېږي، خو د (غیر) د (الا) پر ځای په راتلو مستثنی مجروره کېږي او د (غیر) کلمه منصوب ویل کېږي، لکه (جاءنی القوم غیرَ حمارٍ).
او مستثنی په (الا) چي کله پر مستثنی منه مقدم وي، نو هغه منصوب کېږي، نو په داسي حالت کي (غیرَ) هم منصوب کېږي، لکه (ماجاء نی غیرَ زیدالقوم).
او مستثنی چي کله تر (الا) وروسته په کلام غیر موجب کي وي او مستثنی منه مذکوره وي، نو نصب یې هم جائز دی او بدل جوړول یې هم، لکه (ماجاءنی احدٌ غیرَ زیدٍ) ویل هم جائز دي. او (ماجاءنی احدٌ غیرَ زیدٍ) ویل هم جائز دي.
او کله چي مستثنی مفرغ تر (الا) وروسته په کلام غیر موجب کي وي، نو په داسي صورت کي یې اعراب بحسب العوامل کېږي، نو په داسي ځای کي د (غیرَ) اعراب هم بحسب العوامل کېږي، لکه (ماجاءنی غیرُ زیدٍ وما رأیتُ غیرَ زیدٍ ومامررتُ بغیرِ زیدٍ) (خیرالنحوص: ۲۰۸).

## څلوراتیایم (۸۴) درس

## د غیر معناګانې او د سویٰ او سواءَ اعراب

و (غیر) صفةٌ حملت علی (الا) فی الاستثناء کماحملت (الا) علیها فی الصفة اذا کانت تابعةً لجمع منکورٍ غیر محصور لتعذر الاستثناء، مثل: (لوکان فیهما آلهة الا الله لفسدتا) وضعف فی غیره واعراب (سوی وسواء) النصب علی الظرف علی الاصح.

**ترجمه:** او غیر په اصل کي کلمه د صفت ده، لیکن د استثناء په باب کي پر الا محمول کېږي، لکه چي الا پر غیر صفت حمل کېږي، کله چي الا تابع وي دداسي جمع کومه چي نکره غیر محصور وي د استثناء د متعذر کېدو په وجه سره، لکه (لوکان فیهما آلهة الا الله لفسدتا) او د (الا) پر (غیر) حمل کول ضعیف دي، له

دې په ماسوى كې او د سوى او سواء اعراب نصب كيږي د ظرفيت پر بناء له اصح مذهب سره سم.

**تشريح:** د نن په سبقه كې صرف دوې خبرې دي:

①: د غير او الا معنى حقيقي او مجازي او استعمال يې، ②: د سوى او سواءَ اعراب.

لومړۍ خبره: د غير او الا معنى حقيقي او مجازي او استعمال يې:

و غير صفة حملت على الا فى الاستثناء: د كافيه ملاصاحب رحمه الله د (غير) تر اعراب بيانولو وروسته د هغې معنى حقيقي او مجازي بيانوي، نو وايې: چې په (غير) كې اصل د ادى، چې دا د ماقبل صفت واقع سي، لكه: جاءنى رجلٌ غيرزيدٍ (راغى ماته داسې سړى كوم چې له زيد نه غيرو) او په عربي كلام كې په كثرت سره دا د صفت په ډول استعماليږي، لېكن كله كله دا په مجازي ډول د (الا) په معنى د استثناء لپاره هم كاريږي، لكه (جاءنى القوم غيرَزيدٍ) دلته (غيرزيد) د ماقبل (القوم) لپاره صفت جوړول صحيح نه دي، ځكه چې د موصوف او صفت تر مينځ په تعريف او تنكير كې مطابقت شرط دى، حال دا چې دلته (القوم) معرفه دى او (غير) كه څه هم د معرفه وطرفته مضاف ده، لېكن د توغل فى الابهام له وجې بيا هم نكره ده، نو دلته (غير) د الا) په معنا اخستل كيږي، همدا د كافيه ملاصاحب بيانوي، چې (غير) په اصل وضع كې د صفت لپاره ده، لېكن كله كله په استثناء كې كاريږي، نو په دې وخت بيا د (الا) په معنا كيږي.

كما حملت الا عليها فى الصفة اذا كانت تابعة...الخ: لكه چې (الا) د خپلې اصلي وضع په اعتبار د استثناء لپاره ده، لېكن كله كله په مجازي ډول د (غير) په معنى يعني د صفت لپاره هم راځي، لېكن د دې لپاره مصنف رحمه الله درې شرطونه ذكر كړي دي:

①: اذا كانت تابعةً لجمع منكورٍ: يعني په دې شرط چې دا تر جمع وروسته وي، ②: په دې شرط چې هغه جمع نكره وي، ③: په دې شرط چې هغه جمع غير محصور وي، يعني د افرادو شمېر يې معلوم نه وي، د ټولو مثال دادى: (جاءنى رجالٌ الا زيدٌ).

تر دغو دریو شرطونو وروسته دا دصفت لپاره ولې استعمالیږي؟ نو د دې لپاره د کافیه ملاصاحب رحمه الله وویل: چي (لتعذرالاستثناء) یعني په داسي ځای کي د (الا) د استثناء لپاره کېدل او لکه چي د الله جل جلاله مبارکه وینا هم ده (لوکان فیهما الهة الاالله لفسدتا)، دا راز (لا اله الاالله) په دې دواړو کي (الا) په معنا د (غیر) ده او (آلهة او الـــه) دواړه موصوف دي او (الا) یې صفت ده، ځکه چي دلته استثناء نسي کېدای، وجه یې داده: چي مستثنی خو به یا متصله ، یا به یې منقطع جوړوي، که چېري متصل سي، نو د کومو خدایانو چي په (لا الـــه) کي نفې سوي د ي، له هغو څخه مراد آلهه محققه کېږي، ددې لپاره چي الله تعالی پکي داخل سي او بیا ځیني الله تعالی استثناء سي، نو په دې صورت کي د (اله) متعدد کېدل لازمېږي، کوم چي له توحېد سره منافي دی او که چېري استثناء منقطع سي، نو له آلهه څخه به آلهه باطله مرادېږي، نو په (لااله) سره خو به دآلهه باطله نفي وسي، لېکن د آلهه محققه نفي نه لازمېږي، نو توحېد کوم چي مطلوب او مقصود هغه تر لاسه او حاصل نسو، نو معلومه سوه، چي په داسي ځایونو کي (الا) په خپله اصلي معنا نه، بلکي د (غیر) په معنا ده، د ماقبل لپاره صفت ده.

د کلام خلاصه داده، چي (کلمة غیرللصفة اصلاً و للاستثناء فرعًا و کلمة الا للاستثناء اصلاً وللصفة فرعًا) یعني کلمه (غیر) د اصل وضع او حقیقي معنا په اعتبار د صفت لپاره ده او دفرع په اعتبار د استثناء لپاره ده او کلمه د(الا) د خپل اصل په لحاظ سره د استثناء او دفرع په اعتبار سره د صفت لپاره ده (خیرالنحوص: ۲۱۰).

دا راز په لومړي مثال (ماجاءنی رجالٌ الا زیدٌ) کي هم استثناء ځکه متعذره ده، چي مستثنی پر دوه قسمه ده:

①: متصل: یعني هغه مستثنی په کومه کي چي دا یقیني وي، چي مستثنی په مستثنی منه کي داخله ده.

②: منقطع: یعني هغه مستثنی په کومه کي چي دا یقیني وي، چي مستثنی په مستثنی منه کي داخله نه ده، نو دلته د (رجالٌ) د نکره کېدو په وجه دا احتمال هم

سته چې په (زید) کې داخل وي او دا احتمال یې هم سته، چې داخل نه وي، له همدې وجې نه دا مستثنی متصل ده او نه مستثنی منقطع، ځکه چې په دغو دواړو مستثناګانو کې یقین ضروري دی، ځکه نو دلته (الا) د صفت په معنا اخستل کېږي، که چېرې پر (رجالٌ) الف لام داخل کړل سي، نو اوس (الا) د استثناء لپاره کېږي، ځکه چې په دې صورت کې (زید) تر (الرجال) لاندې داخلېږي او مستثنی متصل کېږي (تقریر کافیه ض: ۲۱۲).

د کافیه ملاصاحب رحمة الله علیه په (غیرمحصور) ټکو سره د (لفلان علی الف درهم الا مائة) په څېر مثالونه ووتل، ځکه چې په دې کې (الفٌ) که څه هم جمع منکور ده، لېکن غیر محصوره نه ده، بلکې عدد یې معلوم او متعین دی.

وضعف فی غیره: چې که چېرې جمع منکور غیرمحصوره نه وي، نو پکې (الا) د (غیر) په معنا اخستل ضعیف دي، غور وکړه! د کافیه ملاصاحب (لایجوز فی غیره) ونه ویل، بلکې (وضعف) یې وویل، دا د دې لپاره چې د امام سیبویه اومتاخرین علماء نحو په نزد دا په غیر کې هم جائز دی، نو د کافیه ملاصاحب رحمة الله علیه د دوی په رعایت کولو (ضعف فی غیره) وویل او (لایجوز فی غیره) یې ونه ویل.

**دوهمه خبره:** د سوای او سواء اعراب:

واعراب سویٰ وسواء النصب علی الظرفیة علی الأصح:

د کافیه ملاصاحب رحمة الله علیه د (غیر) تر معنی او اعراب بیانولو وروسته د (سوی اوسواء) اعراب بیانوي، نو لکه چې د دوهمې خبرې په ضمن کې موږ ویلې وه، چې دا دواړه لازم النصب دي، یعني تل دا دواړه منصوب وي او د منصوب کېدو وجه مو دا ښودلې وه، چې (علی الظرف) یعني د ظرفیة پر بنسټ دا منصوب کېږي، ځکه چې (جاءنی القوم سویٰ زید یا سواء زید) ویل په منزله د (جاءنی القوم مکانَ زید) دی، ځکه چې د دې معنا موږ دا کړې ده، چې د زید پر ځای ټول قوم ماته راغی، دا د علماء بصریین او امام سیبویه صاحب مذهب دی او فاضل مصنف رحمة الله علیه دېته اصح مذهب ویلي دي او د کوفیینو علماؤ مذهب دادی، چې د (سویٰ او سواء) اعراب د (غیر) په ډول دی، کوم چې د عامل موافق راځي، لېکن دا مذهب مرجوح دی.

## پنځه اتيايم (۸۵) درس

## نهم منصوب: د كان او د هغه داخواتو بيان

خبر كان واخواتها: هو المسند بعد دخولها، مثل: كان زيدٌ قائمًا وامره كامر خبر المبتداء ويتقدم معرفةً و قد يُحذف عامله فى نحو: الناس مجزيون بأعمالهم ان خيرًا فخيرٌ وان شرًّا فشرٌّ ويجوز فى مثلها اربعة اوجه ويجب الحذف فى مثل: اما انت منطلقًا انطلقتُ، اى: لأن كنتَ منطلقًا.

**ترجمه:** او له منصوباتو څخه كان او دهغه د اخواتو خبر هم دى، هغه داسي اسم منصوب دى، چي د ده تر داخلېدو وروسته مسند وي، لكه (كانَ زيدٌ قائمًا) او دده معامله د مبتداء د خبر د معاملې په ډول ده او د معرفه كېدو په حال كي مقدم كېږي او كله كله دده عامل حذف كېږي د (الناس مجزيون بأعمالهم ان خيرًا فخيرٌ ان شرًّا فشرٌّ) په څېر تركيبونو كي او جائز دى په داسي تركيب كي څلور صورتونه او واجب دى د (كان) حذفول د (اما انت منطلقًا انطلقتُ) په څېر تركيبونو كي يعني (لأن كنت منطلقًا).

**تشريح:** وروركيه! د نن په سبقه كي صرف دوې خبرې دي:

①: د كان او دهغه داخواتو د خبر تعريف، ②: د كان له خبر سره تړلې څلور اهمې مسئلې.

خبر كان واخواتها هوالمسند بعد دخولها: په دې عبارت كي د كافيه ملاصاحب د افعال ناقصه د خبر تعريف بيانوي، چي دا هغه اسم دى، كوم چي د افعال ناقصه تر داخلېدو وروسته مسند وي، كه چېري دكوم بل عامل تر داخلېدو وروسته مسند وي، نو هغه د همدغه عامل خبر خو شمېرل كېږي، لېكن د دغه افعال ناقصه خبر نسي كېداى، لكه په (كان زيدٌ قائمًا) كي (قائمًا) د (كان) خبر دى او مسند دى، يعني ددې نسبت د زيد و طرفته سوى دى.

### د كان له خبر سره تړلې څلور اهمې مسئلې

**دوهمه خبره:** د كان له خبر سره تړلې څلور اهمي مسئلې:

**لومړۍ مسئله:** وامره كامر خبر المبتداء: د كافيه ملاصاحب رحمه الله وايي: چي د افعال ناقصه د خبر معامله په خپلو شرطونو او احكامو او مسائلو كي د مبتداء

دخبر په څېر ده، د تفصيل لپاره دهمدغه کتاب (۴۵) درس، درېيمه خبره) وګورئ، پرته له يوې مسئلې، چې هلته موږ ويلې وه چې (و اذا کان المبتداء... او کان معرفتين... وجب تقديمه) يعني که چېرې مبتداء او خبر دواړه معرفه وي، نو د مبتداء مقدم کول واجب دي او د خبر نسي پر مخکې کېدای، که نه د التباس خطره ده، چې کوم يو مبتداء دی او کوم يو خبر دی، لېکن دلته د کافيه ملاصاحب رحمه الله عليه وايي: (ويتقدم معرفة) يعني د افعال ناقصه اسم اوخبر که دواړه معرفه هم وي، خو بيا هم ددوی خبر پر اسم مقدم کول جائز دي، په دې شرط چې د اسم اوخبر دواړو، يا لږ تر لږه په دواړو کي د يوه اعراب لفظي وي، د دې لپاره چې التباس لازم نسي، لکه (کان القائم زيدٌ او کان المنطلق زيدٌ او کان هذا زيدٌ) دلته (هذا) اسم اشاره له معرفه کېدو سره سره د کان پر اسم مقدم سوی دی، ځکه چې د اعراب د مختلف کېدو په وجه دلته د التباس هېڅ خطره نسته، لېکن چېرې چې پر دواړو اعراب معنوي وي، يعني اعراب هم ظاهر نه وي او کومه قرينه هم نه وي، چې پر اسميت او خبريت دلالت وکړي، نو صرف په داسي ځای کي خبر پر اسم نسي مخکې کېدای، که نه د التباس وېره ده، لکه (کان الفتیٰ هذا).

**دوهمه مسئله**: و قد يحذف عامله فی نحو الناس مجزيون بأعمالهم خيرًا فخيرٌ و ان شرًّا فشرٌّ: په مذکوره عبارت کي د کافيه ملاصاحب رحمه الله عليه دوهمه مسئله بيانوي، چې کله کله د افعال ناقصه د خبر عامل يعني (کان) حذف کېږي هم، لکه (الناس مجزيون بأعمالهم خيرًا فخيرٌ و ان شرًّا فشرٌّ) وګوره! په دې مثالونو کي تاسو (کان) نه وينئ، لېکن بيا يې هم عمل ظاهر دی، نو له دې څخه معلومېږي، چې (کان) فعل ناقص دلته حذف سوی دی، اصلي عبارت داسي وو: (الناس مجزيون بأعمالهم ان کان عملهم خيرًا فخيرٌ و ان کان عملهم شرًّا فشرٌّ) يعني ټولو خلکو ته د خپلو، خپلو عملونو په حساب سره بدله ورکول کېږي، بيا که چېرې د دوی عملونه ښه وه، نو دوی ته بدله هم ښه ورکول کېږي او که چېرې ددوی عملونه خراب وه، نو بدله هم بده ورکول کېږي.

**يادونه:** له عامل څخه ټول افعال ناقصه مراد نه دي، بلكې په افعال ناقصه كې صرف (كان) مراد ده، ځكه چې دلته د عامل حذفول د تخفيف لپاره دى او تخفيف هلته وي، چيرې چې يو شى ډېر استعمالېږي او ظاهره خبره ده، چې په افعال ناقصه كې صرف (كان) ډېر استعمالېږي، پاتې سوه دده اخوات، نو هغه كه څه هم استعمالېږي، خو په كثرت سره نه، لكه (صار الطين خذفًا) له دې څخه (صار) حذفول جائز نه دي.

**درېيمه مسئله:**

يجوز فى مثلها اربعة اوجه: مصنف علامه ابن حاجب صاحب رحمة الله عليه وايي: چې په مخكنۍ مسئله كې چې موږ كوم مثال وړاندې كړى دى، ددا سې مثالونو او تركيبونو په څلورو طريقو ويل جائز دي:

①: چې دواړه منصوب نسې، لكه (ان خيرًا فخيرًا) د عبارت تقدير داسې كېږي: (ان كان عملهم خيرًا فيكون جزاؤهم خيرًا).

②: دواړه مرفوع ويل، لكه: (ان خيرٌ فخيرٌ) دعبارت تقدير داسې كېږي: (ان كان عملهم خيرٌ فجزاؤهم خيرٌ).

③: لومړى منصوب او دوهم مرفوع ويل، لكه (ان خيرًا فخيرٌ) د عبارت تقدير داسې كېږي: (ان كان عملهم خيرًا فجزاؤهم خيرٌ).

د كافيه ملا صاحب رحمة الله عليه همدا صورت غوره كړى دى، ځكه چې په دې كې محذوف عبارت لږ دي.

④: لومړى مرفوع او دوهم منصوب ويل، لكه: (ان خيرٌ فخيرًا) ددې عبارت تقدير داسې كېږي: (ان كان فى عملهم خيرٌ فيكون جزاؤهم خيرًا) (تقرير كافيه: ۲۱۳).

**فائده:** د مصنف رحمة الله عليه له قول (فى مثلها) څخه هر هغه تركيب مراد دى، په كوم كې چې تر (ان) شرطيه وروسته دوه اسمونه وي او پر دوهم اسم (فاء) جزائيه داخله وي (كما فى المثال المذكور).

څلورمه مسئله:

ويجب الحذف في مثل: اما انت منطلقًا انطلقتُ: تر جوازي حذف وروسته د وجوبي حذف بيان کوي، چي هر هغه عامل د کوم په حذف کولو چي بل شی دده پر ځای درېږي، نو لومړی که څه هم دده حذف جوازي و، لېکن د عوض او قائمقام تر راتلو وروسته دده حذف وجوبي کېږي، ځکه چي که چېري دا حذف وجوبي نسي، نو د ذکر کولو په صورت کي به د عوض او معوض عنه اجتماع لازمه سي، کومه چي ناجائزه ده، لکه د (لان کنت منطلقًا انطلقتُ) پر ځای (اما انت منطلقًا انطلقت).

اعلال: لأن كنت منطلقًا انطلقتُ: تر ټولو مخکي له دې څخه لام حذف کړل سو، ځکه چي له (ان) مصدريه څخه د حرف جار حذفول قياس هم دي او عقلي هم، نو (أن كنت منطلقًا انطلقتُ) سو، بیا له (کنت) څخه د اختصار لپاره (کان) حذف کړل سو، په عوض کي يې کلمه د (ما) راوړل سوه، مخکنی (ان) مصدريه په نون بدل کړل سو، نو (امانت منطلقًا انطلقتُ) جوړ سو (والله اعلم بالصواب).

## شپږ اتيايم (۸۶) درس

### دلسم منصوب د (ان د اسم او اخواتو) بيان

اسم د ان واخواتها: هوالمسند بعد دخولها، مثل: ان زيدًا قائمٌ.

**ترجمه**: له منصوباتو څخه د (انّ) او ددې د اخواتو اسم هم دی، دا هغه اسم دی، کوم چي د حروف مشبه بالفعل تر داخلېدو وروسته مسند وي، لکه (انّ زيدًا قائمٌ).

**تشريح**: وګوره زما وروركيه! موږ اوس لسم قسم منصوب بيانوو، تر ټولو مخکي يې تعريف ته غوږ سئ، چي د حروف مشبه بالفعل اسم هغه اسم دی، کوم چي له دغو حروفو څخه د يوه تر داخلېدو وروسته مسنداليه وي، مثلاله (زيدٌ قائمٌ) څخه (انّ زيدًا قائمٌ) په دې کي د قيام نسبت د همدغه زيد و طرفته سوی دی.

دلته سوال کېږي، چي (زيدٌ) خو د حروف مشبه بالفعل تر داخلېدو مخکي هم مسنداليه و، نو بيا ددې څه مطلب دی، چي د دغو حروفو تر داخلېدو وروسته مسنداليه کېږي؟

د دې جواب دادی، چې بېشکه لومړی هم زید مسندالیه و، لېکن حروف مشبه بالفعل چونکه د مبتداء له نسخه کوونکو څخه دي، کله چې دا پر داخل سي، نو د مبتداء او خبر ترکیب یې له مینځه ځي، نو اوس له نوي سره دده ترکیب جوړیږي، له نوي سره چې موږ د ده ترکیب جوړ کړ، نو په هغه کي هم زیدٌ مسندالیه جوړ سو، لکه په (ان زیدًا قائمٌ) کي زید د (انّ) اسم دی او مسندالیه دی او (قائم) یې خبر دی او مسند دی.

**یادونه**: حروف مشبه بالفعل شپږ دي، کوم چې شاعر په خپل شعر کي را یو ځای کړي دي:

اِنّ بـــاأنّ کأنّ، لیتَ، لـــــکنّ، لعـــلّ
ناصب اسم اند ورافع درخبر ضد ما ولا

## اووه اتیایم (۸۷) درس

## د یوولسم منصوب د (لائ نفي جنس داسم) بیان

المنصوب بلا التی: هو المسندالیه بعد دخولها یلیها نکرةً مضافًا او مشبهًا به، مثل: لاغلام رجلٍ ظریفٌ فیها، ولا عشرین درهمًا لک، فان کان مفردًا، فهو مبنیٌّ علی ما یُنصب به وان کان معرفةً او مفصولًا بینه و بین (لا) وجب الرفع والتکریر.

**ترجمه**: له منصوباتو څخه منصوب په لائ نفي جنس هم ده، دا هغه اسم دی، کوم چې د لائ نفي جنس تر داخلېدو وروسته مسندالیه وي په داسي حال کي چې تر لائ نفي جنس وروسته بېله فصله مضاف، یا مشابه بالمضاف واقع سوی وي، لکه: (لاغلامَ رجلٍ ظریفٌ فیها ولاعشرین درهمًا لک) بیا که چېري دلائ نفي جنس اسم مفرد ويٍ، نو هغه مبنيٌ پر علامه د نصب کېږي او که چېري معرفه وي، یا د دغه اسم او (لا) تر مینځ فاصله وي، نو رفع او تکرار واجب دي.

**تشریح**: په مذکوره عبارت کي مصنف رحمه الله د یوولسم منصوب یعني دلائ نفي جنس د اسم بیان کوي، دنن په سبقه کي د دې متعلق موږ درې خبرې ذکر کوو:

①: د اسم لائ نفي جنس تعریف، ②: په مذکوره تعریف کي دقیدونو فائدې، ③: پر مذکوره تعریف یو سوال او د هغه جواب.

## داسم لائ نفي جنس تعریف

**لومړۍ خبره:** د اسم لائ نفي جنس تعریف:

**المنصوب:** په دې کي الف لام په معنی د (الذی) اسم موصول دی او (منصوب) صیغه دصفت یعني د اسم مفعول صیغه د موصول لپاره صله ده، نو د عبارت تقدیر داسي کیږي: (الاسم الذی نُصب بلا التی لنفی الجنس) اوس یې معنا داسي کیږي، چي هغه اسم کوم ته چي د لاء نفي له وجې نصب ورکول سوی وي، هغه د نحوییېنو په اصطلاح کي هغه اسم دی، چي د (لا) تر داخلېدو وروسته مسندالیه وي، په داسي حال کي چي له ده سره داسي نکره متصل وي، چي مضاف یا شبه مضاف وي، د داسي اسم نکره مضاف مثال (لاغلامَ رجلٍ ظریفٌ فیها) دی، په دې کي (غلام) د (لا) اسم دی او د (لا) تر داخلېدو وروسته مسندالیه واقع سوی دی او له همدغې (لا) سره بلکل متصل هم دی اود را روان (رجلٌ) وطرفته یې اضافت سوی دی، دا راز د مشابه بالمضاف مثال (لا عشرین درهمًا لک) په دې کي (عشرین) د (لا) اسم دی او ورسره متصل دی او مسندالیه هم دی او مشابه بالمضاف هم دی.

مشابه بالمضاف معنا داده، لکه څرنګه چي مضاف په خپله پوره معنا ښېندلو کي مضاف الیه ته محتاج وي، بلکل چي همداسي یو اسم په خپله معنا ښېندلو کي کومې بلې کلمې ته محتاج وي مثلا په مذکور مثال کي (عشرین) را واخله، دا چي څومره ډېرواره هم متکلم ووایې، نو تر هغه وخته پوري په پوهه کي نه راځي، تر څو چي ورسره (درهمًا) یا کوم بل تمیېز ونه لګول سي.

**دوهمه خبره:** په ذکرسوي تعریف کي د قیدونو فائدې:

المنصوب بلا التی لنفی الجنس: دا معرف دی او له (هوالمسندالیه) څخه تر (او مشبهًا به) پوري عبارت یې تعریف دی، په تعریف کي (هو) ضمیر د لائ نفي جنس یعني د معرّف وطرفته راجع دی (المسندالیه) د جنس په درجه کي دی کوم چي معرف او غیر معرف دواړوته شامل دی او (بعد دخولها) لومړی فصل دی، په ذریعه یې نور ټول مسندونه وزي.

**تنبیه:** د مطلق لائ نفي جنس تعریف خو صرف دومره دی، کوم چي بیان سو، لیکن موږ چونکه هغه اسم بیان کړی دی، کوم چي منصوب وي، ځکه نو مصنف رحمه الله دده لپاره نور قیدونه هم اضافه کړل، مثلا: (یلیها) دا دوهم فصل دی، د دې په ذریعه د دغې لائ نفي جنس هغه اسم کوم چي ورسره متصل نه وي ووت، (نکره) دا دریم فصل دی، د دې په ذریعه د لائ نفي جنس هغه اسم کوم چي معرفه وي ووت، (مضافًا او مشبهابه) دا څلورم فصل دی د دې په ذریعه د لائ نفي جنس هغه اسم کوم چي مفرد وي ووت، په اخیر کي چي د کومو دریو فصلونو په ذریعه کوم اسماء ووتل د هغو ټولو په مستقله توګه بحث را روان دی، انشاءالله تعالیٰ!

**دریمه خبره:** پر مذکوره تعریف یو سوال او دهغه جواب:

مصنف رحمه الله چي د اسم لائ نفي جنس کوم تعریف بیان کړی، پر دې یو سوال کېږي، چي تر دې مخکي منصوباتو کي یې دا طریقه اختیار کړې وه، چي (خبر کان واخواتها) او (اسم اِن واخواتها) او (خبر ماولاالمشبهتین بلیس) لیکن دلته چي را ورسید، نو خپله طریقه او طرزیې بدل کړل، ویې ویل: (المنصوب بلاالتی لنفی الجنس) نو د دې وجه څه ده؟

شارحینو ددې سوال په مختصر او مفصل دواړو ډولونو جوابونه کړي دي، خو په هغو کي لنډ جواب دا هم دی، چي دلائ نفي جنس هر اسم منصوب نه وي، بلکي په ځینو حالتونو کي منصوب وي او په ځینو کي مرفوع، حال دا چي په منصوباتو کي موږ صرف هغه حالتونه بیانوو په کومو کي چي دا منصوب وي، ځکه نو مصنف رحمه الله د (المنصوب بلاالتی لنفی الجنس) عنوان راوړ.

**څلورمه خبره:** د لائ نفي جنس داسم حالات او اعراب:

وګوره زما وروروکیه! کوم عبارت چي موږ نن وویل، په هغه کي که چېري غور وسي، نو مصنف رحمه الله په هغه کي د اسم لائ نفي جنس شپږ حالتونه او دهغه اعراب بیانوي، لومړی او دوهم صورت خو د تعریف په ضمن کي بیان کړل سوه، مثلا: ① : یلیها نکرةً مضافًا، یعني هغه اسم به له لائ نفي جنس سره متصل وي

او نکره به هم وي او له دې سره سره به مضاف هم وي، لکه (لاغلام رجل ظريف فيها)، ②: او مشبهًا به: دوهم صورت دادی، چي هغه اسم لائ نفي جنس متصل هم وي او نکره هم وي، لېکن د مضاف کېدو پر ځای مشابه بالمضاف وي، لکه (لاعشرين درهمًا لک).

د دې دواړو قسمونو اعراب دادی، چي دا دواړه معرب کېږي او منصوب کېږي، لکه په لومړي مثال کي (غلام) او په دوهم مثال کي (عشرين درهمًا) دواړه منصوب دي.

③: فان کان مفردًا: درېیم صورت دادی، چي اسم لائ نفي جنس نکره متصله وي، لېکن مضاف يا مشابه بالمضاف نه وي، بلکي نکره مفرده وي، که څېرې کوم اسم د تثنيه، يا جمعې په شکل هم وي، لېکن که څېري مضاف يا مشابه بالمضاف نه وي، نو هغه مفرد دی، ځکه چي دلته مفرد دَ مضاف او شبه مضاف په مقابله کي دی، نه چي د تثنيه او جمع په مقابله کي.

مصنف رحمه الله د دغه قسم اعراب بيانوي، وايي: (فهو مبنى على ماينصب به) يعني د لائ نفي جنس داسي اسم مبني پر نصب کېږي او مبني پر علامه دنصب درې صورتونه لري:

①: زبر، لکه (لارجلَ فى الدار)، ②: يا ماقبل يې مفتوح، لکه (لامسلمَين فى الدار)، ③: يا ماقبل يې مکسور، لکه: (لامسلمِين فى الدار).

**سوال:** په دې صورت کي دا ولي مبني کېږي؟

**جواب:** دا د حرف معنا ته متضمن دی، نو څرنګه چي ټول حروف مبني وي، نو دا هم مبني سو او دا د حرف معنا ته داسي متضمن دی، چي د دې اصل عبارت دادي: (لا من رجل فى الدار) د دې دلېل دادی، چي دا د (هل من رجل فى الدار؟) په جواب کي راوړل کېږي او په سوال کي چونکه (من) مذکور دی، نو په جواب کي هم (من) ذکر کېږي، ځکه چي قاعده ده (المذکور فى السوال کالموعود فى الجواب).

④: وان کانت معرفةً: څلورم صورت دادی، چي د لائ نفي جنس اسم معرفه وي.

⑤: او مفصولا بینه وبین لا: پنځم صورت دادی، چي دلائ ن في جنس اسم نکره منفصله وي، هغه که اسم نکره مفرده وي، یا اسم نکره مضاف یا مشابه بالمضاف وي، نو ګوا کي چي د دغه پنځم صورت درې حالتونه سوه، د دې ټولو صورتونو اعراب دادی، چي (وجب الرفع والتکریر) یعني د دې ټولو صورتونو مرفوع کېدل واجب دي، ځکه چي (لا) ملغیٰ عن العمل کېږي، یعني هیڅ عمل نه کوي او دوهم دا چي په داسي صورتونوکي (لا) له دوهم اسم سره مکرر راوړل واجب دي، لکه (لازیدٌ فی الدار ولا عمروٌ) او (لا فیها رجلٌ ولا امرأةٌ).

**سوال:** په ذکرسویو صورتونو کي د لائ نفي جنس اسم مرفوع ولې سو او (لا) ولې مکرره راوړل کېږي؟

**جواب:** شارحینو ددې جواب دا سي لیکلی، چي لومړی صورت (یعني د معرفه کېدو په صورت کي) ځکه مرفوع ویل کېږي، چي لائ نفي جنس د اصل وضع په اعتبار د نکره دصفت دنفي لپاره راځي، نو کله چي پر معرفه داخل سي، نو ددې عمل باطلېږي او هغه اسم د مبتداء کېدو په وجه مرفوع کېږي.

پاته سو دوهم صورت، نو به هغه کي رفع ځکه واجب ده، چي (لا) یو ضعیف قسم عامل ده، نو که چېري تر دې وروسته اسماء پر خپل صحیح ترتیب وي، نو دا پکي عمل کوي، که نه وي، نو عمل نه کوي، بلکي (لا) ملغی عن العمل کېږي او هغه اسم د مبتداء کېدو په وجه مرفوع کېږي.

او د (لا) تکرار ځکه لازم دی، چي جواب له سوال سره موافق سي، لکه د (ازیدٌ فی الدار ام عمروٌ) په جواب کي چي همداسي وویل سي: (لازیدٌ فی الدار ولا عمروٌ).

دا راز د (افی الدار رجلٌ ام امرأةٌ) په جواب کي هم همداسي ویل کېږي، چي (لا زیدٌ فی الدار ولا عمروٌ).

## اته اتیایم (۸۸) درس

## داسم لائ نفي جنس اعرابي صورتونه

ومثل: قضيةٌ ولا اباحسنٍ لها متأولٌ وفى مثل لاحول ولا قوة الا بالله خمسة اوجهٍ: فتحهما، وفتح الأول ونصب الثانى، ورفعه و رفعهما ورفع الأول على ضعفٍ وفتح الثانى.

**ترجمه:** او د (قضيةٌ و لا أبا حسنٍ لها) په څېر ترکيبونو کي تاويل سوی دی او د (لاحول ولاقوة الا بالله) په څېر مثالونو کي پنځه صورتونه دي: ددواړو فتح، د لومړي فتح او دوهم نصب، د لومړي فتح او د دوهم رفع، د دواړو رفع او د لومړي رفع په ضعيفه طرېقه او د دوهم فتح.

**تشريح:** د نن په سبقه کي درې خبرې دي:

①: يو سوال او د مصنف رحمه الله عليه جواب، ②: د اسم لائ نفي جنس اعرابي صورتونه، ③: يو سوال او د هغه جواب.

**لومړۍ خبره:** يو سوال او دمصنف رحمه الله عليه له لوري يې جوآب:

ومثل قضية ولا أبا حسنٍ لها: په دې سره مصنف رحمه الله عليه د يوه سوال جواب ورکوي، سوال دادی، چي جنابه! همدا اوس تا قاعده بيان کړه، چی (وان كان معرفةً وجب الرفع والتكرير) يعني که چېري دلائ نفي جنس اسم معرفه و، نو بيا خو دهغه مرفوع ويل واجب دي او دوهم له هغه سره د (لا) تکرار هم لازمي دی؟ نو مصنف رحمه الله عليه يې داسي جواب ورکړ، چي (متأول) يعني محترمه! ستا خبره بلکل صحيح ده، لېکن تا چي کوم مثال وړاندي کړی، په هغه کي په دوو طرېقو سره تاويل کېږي:

①: په دې کي مضاف محذوف دی، اصل عبارت داسي دي: (لامثل ابی حسنٍ لها) نو له دې څخه مضاف (مثل) حذف کړل سو، مضاف اليه (ابی) يې پر ځای ودرېد، د هغه اعراب (نصب) پر ده جاري کړل سو، نو (لا أبا حسنٍ لها) سو او لفظ د (مثل) چونکه په ابهام کي ډوب دی، ځکه نو معرفه ته په مضاف کېدو هم معرفه نسو، بلکي نکره پاته دی، ځکه په معرفه کي تخصيص او عدم ابهام ضروري وي، نو که چېري دېته وکتل سي، نو دا په المنصوب بلا والا صورت کي

داخل دی او له (وان کان معرفة .....) صورت سره دده هیڅ تعلق نسته، پر کوم
چي مذکوره سوال واقع سوی دی.
②: دوهم چي دا په کنیه ویلوسره د (لکل فرعونٍ موسی) په څېر وصف مشهور
یعني (فَیْصل) پر وزن د (حیدرٌ) په معنا د (فاصلٌ بین الحق والباطل) په تاویل
کېږي، کوم چي نکره ده، نو اوس یې معنا داسي کېږي: (قضیةٌ لا فصل لها)
یعني دا دومره لویه مسئله ده، د کومې چي حل کوونکی هېڅوک نسته، په دې
صورت کي دا نکره مفرده کېږي او مبني پر فتح کېږي، ځکه چي په اسماء ستة
مکبره کي (الف) مبني د فتح پر علامه جوړېږي او په دې صورت کي هم دا په
(وان کان معرفةً) کي داخل نه دی، چي مذکوره سوال وارد سي.

## دلائ نفي جنس داسم شپږم حالت

له (وفی مثل لا حول ولاقوة الا بالله) څخه تر (وفتح الثانی) پوري مصنف رحمة الله عليه د
اسم لائ نفي جنس شپږم صورت او په هغه کي د جواز پنځه وجې بیانوي، دلته له
(لاحول ولاقوة الا بالله) څخه هر هغه ترکیب مراد دی، په کوم کي چي (لا) په
اعتبار د عطف مکرره واقع سوي وي او تر دواړو وروسته متصل اسم نکره وي،
نو پکي پنځه وجې جائز دي:

**لومړی صورت:**

**فتحهما**: یعني چي دواړه اسم مبني پر فتح وي، لکه (لاحولَ ولا قوةَ الا بالله) په
دې صورت کي دواړه ځایونه (لا) لپاره د نفې جنس کېږي او وروستنی اسم د
نکره مفرده کېدو په وجه مبني پر فتح دی، په داسي صورت کي د دې په ترکیب
کي دوه احتمالات دي: یو دا چي (لاحولَ ولاقوةَ الابالله) ټول یوه جمله سي او د
مفرد عطف پر مفرد سي، یعني د دواړو یو خبر مقدر ومنل سي، مثلا داسي وویل
سي: (لاحول عن المعصیة ولاقوة علی الطاعة موجودان الا بالله) په دې کي
(لاقوة) د مفرد عطف پر (حولَ) مفرد سوی دی او (موجودان) د دواړو خبر دی
کوم چي محذوف دی.

دوهم دا چي (لاحول ولا قوة الا بالله) پوره دوې جملې سي اؤ د یوې پوره جملې عطف پر بله پوره جمله سي، مثلا د عبارت تقدیر داسي سي: (لاحول عن المعصية موجودٌ الا بالله ولاقوة على الطاعة موجودةٌ الا بالله) دا راز دواړه ځایونه (لا) لپاره د نفې جنس سي، (حولَ) یې اسم سي او موجودة یې خبر محذوف سي، لائ نفې جنس سره له خپل اسم او خبر پوره جمله معطوف علیه (لا) د نفي جنس، (قوة) یې اسم او (موجودةٌ) یې خبر، لائ نفې جنس سره له خپل اسم او خبره پوره جمله معطوف سو، نو په دې صورت کي د پوره جملې عطف پر پوره جمله کېږي.

**دوهم صورت:**

**فتح الأول ونصب الثانی:** یعني له دواړو څخه لومړی مبني پر فتح وي او دوهم منصوب وي، لکه (لاحولَ ولاقوةً الا بالله) په دې صورت کي لومړی (لا) د نفي جنس لپاره ده او وروسته اسم مفرد یې اسم کېږي او دوهم (لا) چونکه صرف د تاکید لپاره ده، نو (قوةٌ) یې معمول نسي کېدای، بلکي د لومړي پر لفظ د معطوف کېدو په وجه په تنوین سره منصوب کېږي او (حولَ) چونکه لفظًا منصوب دی او مبني کېدل یې عارضي دي، نو اعتبار یې د منصوب کېدو کېږي، لهذا (قوةٌ) هم منصوب کېږي، مبني پر فتح ځکه نسي کېدای، چي د مبني پر فتح چي کوم شرطونه دي په هغو کي یو د اتصال شرط پکي نېستي دی.

د دې صورت په ترکیب کي هم دوه احتمالونه دي:

①: د مفرد عطف پر مفرد کېدل او د دواړو یو خبر مقدر را ایستل، لکه (لاحولَ عن المعصية ولاقوةَ موجودان الا بالله).

②: د پوره جملې پر پوره جمله عطف کېدل اؤ د هري (لا) بېل، بېل خبر محذوف کېدل، لکه (لاحول عن المعصية موجودٌ الا بالله ولا قوة على الطاعة موجودٌ الا بالله).

**دریم صورت:**

**رفعه:** دریم صورت دا چي لومړی (لا) د نفي جنس لپاره وي او وروستنی اسم مفرد يې اسم وي او مبني پر فتحه وي او دوهم (لا) زائده او ملغی (منع) عن العمل وي، نو (قوةٌ) په تنوين سره مرفوع او د (حولَ) پر محل عطف کېږي، ځکه چي د لائ نفي جنس اسم د خپل حقيقت په اعتبار مبتداء ده او مبتداء مرفوع وي، نو دا هم مرفوع کېږي، ياد لره چي په دې صورت کي هم دوه احتمالات دي: يعني عطف المفرد على المفرد او عطف الجملة على الجملة.

په بل عبارت د مذکوره دواړو صورتونو خلاصه په اسانه طريقه زده کړئ، چي د (قوةٌ) د معطوف عليه دوه محل دي:

①: **محل قريب:** يعني د لائ نفي جنس اسم کېدل، په دې صورت کي اسم مبني پر فتح کېږي.

②: **محل بعيد:** يعني مبتداء کېدل يې، نو د (قوةً) عطف که چېري د (حولَ) پر محل قريب وسي، نو منصوب کېږي او که چېري پر محل بعيد عطف سي، نو مرفوع کېږي.

**څلورم صورت:**

**رفعهما:** يعني (لاحولٌ ولاقوةٌ الا بالله) په دې صورت کي دواړه ځايونه (لا) ملغی عن العمل کېږي او دواړه اسمونه د مبتداء کېدو په وجه مرفوع کېږي، بيا پکي هم دوه احتمالونه دي:

①: د مفرد عطف پر مفرد ، د دواړو يو خبر محذوف را ايستل، لکه (لاحولٌ و لاقوةٌ موجودان الا بالله).

②: د جملې عطف پر جمله، د دواړو بېل او مستقل خبر را ايستل، لکه (لاحولٌ موجودٌ ولا قوةٌ موجودةٌ الا بالله).

دا څلورم صورت په اصل کي د يوه سوال جواب دی، سوال دا دی، چي (ابغيرالله حولٌ وقوةٌ؟)، نو د دې په جواب کې ويل کېږي: (لاحولٌ ولاقوةٌ الا بالله).

ځرنګه چې دواړه اسم په سوال کې مرفوع وه، نو په جواب کې هم مرفوع سو، (لانّ المذکور فی السؤال کالموعود فی الجواب).

**پنځم صورت:**

رفع الأول علی ضعف وفتح الثانی یعني (لاحول ولاقوة الا بالله) په دې صورت کې لومړی (لا) مشابه بلیس کېږي او (حولٌ) یې د اسم کېدو په وجه مرفوع کېږي او دوهم (لا) د نفي جنس لپاره کېږي او (قوةَ) اسم مفرد یې اسم، مبني پر فتح کېږي.

لېکن د لومړی (لا) د لیس له مشابه بللو سره یې (علی ضعف) وویل، یعني دا قول ضعېف دی، ځکه چې د (لا) مشابهت له (لیس) سره ضعېف دی، نو د (لیس) په ډول ددې عمل کول هم ضعېف کېږي.

## نه اتیایم (۸۹) درس

### لائ نفي جنس او ددې له اسم سره تړلې دوې اهمې قاعدې

و اذا دخلت الهمزة لم یتغیرالعمل ومعناها: الاستفهام والعرض والتمنی ونعت المبنی الأول مفردًا یلیه مبنی ومعربٌ رفعًا ونصبًا مثل: لارجلَ ظریفَ و ظریفٌ و ظریفًا والا فالاعراب.

**ترجمه**: او کله چې پر لائ نفي جنس همزه داخله سي، نو ددې عمل ته تغېر نه رسېږي، او معنا یې د استفهام، عرض، تمنیٰ جوړېږي او د اسم مبني اول صفت په داسې حال کې چې هغه مفرد وي او (دلا) له اسم سره متصل هم وي، نو هغه اسم مبني او معرب، مرفوع او منصوب دواړه کېدای سي، لکه (لارجل ظریفَ او ظریفٌ او ظریفًا)، که نه نو دده حکم معرب کېږي.

**تشریح**: ګوره وروکیه! د نن په سبقه کې دلائ نفي جنس او ددې د اسم په هکله دوې قاعدې ذکر کېږي او په دوهمه قاعده کې د امام سیبویه اختلاف هم ذکر کېږي.

لومړی قاعده:

له اذا دخلت همزة الاستفهام څخه تر والعرض والتمنی پورې مصنف رحمه الله دا مسئله بیانوي، چې کله پر لائ نفي جنس همزه استفهام داخله سي، نو ددې په

درس کافيه

عمل کي هيڅ هم نه راځي، يعني که چېري ددې اسم مبني پر فتح وي، نو په وروسته کي هم همداسي پاتېږي او که چېري معرب وي، نو په وروسته کي هم هماغسي معرب پاتېږي، وجه يې داده، چي همزه استفهام د کوم عامل عمل نه باطلوي، خو معنا يې بدلېږي، مصنف رحمه الله وايي: چي (ومعناها الاستفهام والعرض والتمنی) يعني داسي لائ نفي جنس هم د استفهام په معنا خو وي، لکه (الا رجلٌ فی الدار؟)، وګورئ د همزه استفهام تر داخلېدو مخکي ددې اسم همداسي مبني پر فتح و او اوس هم مبني پر فتح دی، لېکن په معنا کي يې فرق راغلی، مخکي جمله خبريه وه او اوس جمله انشائيه ځيني جوړه سوه او کله کله د عرض په معنا وي، لکه: (الا نزول لک بنا فنُحسن اليک) او کله کله د تمنی په معنا وي، لکه (الا ماء اشربه) لېکن دا خبره ياد لرئ، چي د همزه استفهام پر ځای که چېري کوم حرف جر پر داخل سي، نو هغه وخت په عمل کي بدلون راځي، لکه (آذيتني بلاجرمٍ وخدمته بلامالٍ).

**دوهمه قاعده:**

له ونعت المبنی الأول مفردًا څخه تر (والا فالاعراب عبارت پوري د کافيه ملاصاحب دوهمه قاعده بيانوي، لېکن تر دې مخکي د دې عبارت د قيدونو فائدې ته غور سئ:

**د قيدونو فائدې:** ونعت المبنی ①: په مبني ويلو سره يې دا عبارت وايستل: لاغلام رجل ظريفًا فی الدار، ځکه چي په دې عبارت کي غلام کوم چي دلائ نفي جنس اسم دی مبني نه بلکي معرب دی.

②: د الاول په قيد سره صفت ثاني اوثالث ووت لکه: لارجل ظريف کريم فی الدار.

③: په مفرد ويلو يې له مضاف وغيره څخه احتراز وکړ، لکه: لارجل حسن الوجه ، دلته احسن الوجه که څه هم نعتِ اول دی، مګر مفرد نه بلکي مضاف دی.

④: د يليه په قيد سره هغه نعت خارج سو، کوم چي د لائ نفي جنس له اسم سره متصل نه وي، لکه: لاغلام فيها ظريف.

**داعراب وجې:**

په لومړي صورت کي دا مبني پر فتح ځکه سو، چي قاعده ده، چي کلام منفي کله په یو قید مقید سي، نو په حقیقت کي هغه د نفي پر قید داخلېږي، نو د لارجل ظریف عبارت تقدیر داسي کېږي: لاظریفٌ، نو ځرنګه چي ظریف نکره مفرد ده له همدې وجې مبني پر فتح سو، ځکه چي دلائ نفي جنس اسم که چېري نکره مفرد وای نو مبني پر فتح به وه، د دې معرب ویل هم د قاعدې له مخې دی، ځکه چي دا تابع دی او په تابع کي دا قاعده ده چي هغه په اعراب کي د متبوع تابع وي، نه چي په بناء کي، ځکه چي بناء خو یو عارضي شی دی او اصل په کي اعراب (معرب کېدل) دي، اوس که چېري ظریف د رجل پر محل حمل کړل سي، نو مرفوع ویل کېږي، ځکه چي رجل محلا مرفوع دی او که پر لفظ حمل سي، نو منصوب ویل کېږي، ځکه چي رجل لفظًا منصوب دی (تقریر کافیه ص: ۲۱۹).

قاعده داده، چي د لائ نفي جنس اسم.کوم چي مبني پر فتح وي د هغه په صفت کي که چېري درې شرطونه موجود وي، نو هغه معرب او مبني دواړه ویل کېدای سي او د معرب کېدو په صورت کي هغه مرفوع او منصوب دواړه ویل کېدای سي، دا راز دا ټوټل درې صورتونه کېږي، له شرطونو څخه تر ټولو لومړی شرط دادی، چي هغه صفت د اسم مبني لومړی صفت وي، دوهم دا چي هغه صفت هم د اسم مفرد په څېر مفرد وي، یعني مضاف یا شبه مضاف نه وي، درېیم دا چي هغه له خپل اسم مفرد موصوف سره متصل وي، نه ځیني بېلېږي، مصنف رحمة الله علیه د دې لپاره مثال وړاندي کوي (لارجلَ ظریفٌ) وګوره (رجلَ) دلائ نفي جنس اسم دی او د مفرد کېدو په وجه سره مبني پر فتحه دی، (ظریفٌ) یې لومړی صفت دی، مفرد هم دی او متصل هم دی، نو دا مبني پر فتحه ویل کېږي، د دې لپاره چي د موصوف او صفت دواړو تر مینځ مطابقت راسي او دا که معرف ومنل سي، مرفوع هم ویل کېدای سي، په دې صورت کي دده حمل د لائ نفي جنس داسم پر محل حمل کېږي، هغه چونکه محلا یعني د مبتداء واقع کېدو په وجه مرفوع وي، نو دا هم مرفوع کېږي.

**والا فالاعراب**: د کافیه ملاصاحب رحمة الله علیه وایې: چي که چېري له مذکوره دریو شرطونو څخه کوم یو شرط هم پیدا سي، نو داسي صفت صرف په معرب کېدو

سره مرفوع او منصوب خو ویل کېدای سي، لېکن مبني پر فتحه نسي کېدای، که مرفوع وویل سي، نو دی پر محل بعید حمل کېږي او که منصوب وویل سي، نو پر محل قریب حمل کېږي.

## نیویم (۹۰) درس

### دلائ نفي جنس اوددې له اسم سره تړلې درېیمه قاعده

والعطف على اللفظ وعلى المحل جائزٌ فى مثل: لاأبَ، وابنًا وابنٌ ومثل: لا ابًا له ولا غلامى له جائزٌ تشبيهًا له بالمضاف لمشاركته له فى اصل معناه ومن ثم لم يجز (لا ابا فيها) وليس بمضافٍ لفسادالمعنى خلافًا لسيبويه ويُحذف كثيرًا فى مثل: لا عليک، اى لا بأس عليک.

**ترجمه:** او عطف پر لفظ او محل دواړو جائز دی، لکه (لااب وابنًا وابنَ) او لکه (لا اباله ولاغلامی له) دا مثالونه جائز دي، د دوی له مضاف سره د مشابهت لرلو له وجې له مضاف سره په اصل معنا کي مشارکت سته، له همدې وجې (لا ابا فیها) جائز نه دی او دا په حقیقت کي مضاف نه دی دمعنا دفساد له وجې، په دې کي د امام سیبویه اختلاف دی او د (لا) اسم د (لا علیک) په څېر مثالونو کي ډېر حذف کېږي، د دې معنا ده (لابأس علیک).

**تشریح:** د نن په سبق کي څلور خبرې دي:

①: د لائ نفي جنس له اسم سره تړلې درېیمه قاعده، ②: پر مذکوره قاعده سوال او دهغه جواب، ③: د کافیه د ملاصاحب پر سیبویه رد، ④: د لا نفي جنس له اسم سره تړلې څلورمه قاعده.

**لومړۍ خبره:** د لائ نفي جنس له اسم سره تړلې درېیمه قاعده:

والعطف على اللّفظ وعلى المحل جائز فى مثل لااب وابنًا وابنٌ په دې عبارت کي مصنف رحمه الله علیه د لائ نفي جنس له اسم سره تړلې درېیمه قاعده بیانوي، چي پر ده که چېري اسم عطف سي، نو داسي کول جائز دي، په دې شرط چي دلائ نفي جنس اسم مکرر نه وي او اسم معطوف نکره وي، نو په داسي صورت کي معطوف منصوب هم کېدای سي او مرفوع هم، که چېري منصوب وي، نو حمل

دمعطوف علیه پر لفظ کیږي او مرفوع کیږي، او پر محل یې عطف کېږي، لکه (لااب و ابنًا دا (لاابٌ وابنٌ) هم ویل کېدای سي، دا د عربي ژبې د مشهور شاعر فرزدق د یوه شعر ټوټه ده، شعر په لاندي ډول دی:

لا اب و ابنٌ مثل مروان وابنه * اذ هو بالمجد ارتدّی وتأزّرا

**ترجمه**: د مروان او دده د زوی په څېر هیڅ پلار او زوی نسته، ځکه چي مروان د بزرګۍ قمیص او پرتوګ اغوستي دي.

**یادونه**: څرنګه چي موږ د (فی مثل لا اب وابنًا) تعریف دا کړی و، چي لائي نفي جنس مکرره نه وي او اسم معطوف نکره وي، لېکن ددې پر خلاف که چېري (لا) مکرره وي، نو دهغه اعراب داسي نه کېږي، بلکي د هغه اعراب د (لاحول ولاقوة الا بالله) په ډول کېږي، دا راز که چېري د معطوف نکره پر ځای معرفه راسي، نو هم یې دا اعراب نه کېږي، بلکي د هغه مرفوع ویل واجب دي، ځکه په دې صورت کي (لا) ملغی عن العمل کېږي، لکه (لاغلام لک والفرسُ) وګوره دلته (الفرس) عطف دی د (غلام) پر محل او (غلام) چونکه محلا مرفوع دی، نو دالفرس مرفوع ویل هم واجب کېږي.

**دوهمه خبره**: پر مذکوره قاعده سوال او د هغه جواب:

ومثل لا ابًا له ولا غلامی له جائزٌ: دا دیوه سوال جواب دی له (مثل لا ابًا له ولا غلامَی له) څخه هر هغه ترکیب مراد دی، په کوم کي چي دلائ نفي جنس تر اسم وروسته لام د اضافت وي، او پر هغه اسم د اضافت احکام جاري سوي وي.

د سوال تقریر دادی، چي مخکي تاسو ویلې وه، چي دلائ نفي جنس اسم که چېري نکره مفرده وي، نو مبني علی الفتح کېږي، لیکن په (لاابا له ولاغلامَی له) کي (ابًا) او (غلامی) دواړه دلائ نفي جنس اسم دي اونکره هم دي، ځکه چي نه مضاف دي او نه مشابه بالمضاف او بیا هم مبني پر فتح نه دي، بلکي معرب دي، که چېري دا مبني وای، نو (لا اب له ولاغلامَینَ له) به وای؟

د کافیه ملاصاحب رحمه الله علیه په دې ټکو جواب ورکړی چي (تشبیهًا له بالمضاف لمشارکته له فی اصل معناه) یعني سوال کوونکې! تا چي کومه خبره وکړه، چي

نه مضاف دی، او نه مشابه بالمضاف نو وبخښنه دا که څه هم مضاف خو نه دی، لېکن مشابه بالمضاف هرومرو دی او له مضاف سره دده مشابهت د اصلي معنا په اعتبار سره دی او هغه ده اختصاص، يعني په مضاف کي اصل معنا اختصاص وي، او دلته هم اختصاص سته، ځکه (ابٌ) له (ابنٌ) سره خاص وي او (غلام) له (مولی) سره خاص وي، نو کله چي مشابهت راغی، نو دواړه مفرد نه پاتېږي او کله چي مفرد پاته نه سول، نو مبني پر فتح کېدل يې هم باطل سو، نو په دې صورت کي دا معرب کېږي، لکه د (لاابَ) پر ځای (لاابًا) او د (لاغلامَين له) پر ځای (لاغلامَی له) ويل کېږي.

ومن ثمّ لم يجز لا ابا فيها: چي پورتني دواړه ترکيبونه موږ ځکه روا بللي وه، چي پکي له مضاف سره مشابهت و، ځکه په دواړو کي د اختصاص معنا وه، نو په کوم ترکيب کي چي دده په ډول د اختصاص معنا نه وي، هغه ناجائز کېږي، لکه: (لا ابا فيها) په دې کي د (فيها) د ضمير مرجع (دارٌ) ده او د (ابٌ او دارٌ) تر مينځ کومه د اختصاص معنا نسته، يعني دلته دلاءِ نفي جنس اسم (ابًا) نه خو د (فيها) وطرفته مضاف دی او نه مشابه بالمضاف دی، نو (لا ابًا فيها) ويل جائز نه سو، ځکه چي (ابٌ) د نکره مفرده کېدو په وجه مبني على الفتح کېدل پکار وه.

**دريمه خبره**: د کافيه د ملاصاحب پر سيبويه رد کول:

وليس بمضاف لفساد المعنى خلافًا لسيبويه:

په دې عبارت کي د کافيه ملاصاحب رحمه الله غواړي پر سيبويه رد وکړي، هغه په دې ډول چي مخکي دا خبره تېره سوه، چي (لا ابًا له ولاغلامَی له) د مشابه بالمضاف کېدو په وجه معرب دی، لېکن امام سيبويه صاحب وايي: چي دا دواړه معرب خو دي، لېکن د مشابه بالمضاف کېدو په وجه نه، بلکي د اضافت حقيقيه په وجه سره دي، ځکه چي دده په نزد په (لاابًا له او لاغلامَی له) دواړو کي لام زائد دی، نو اصل عبارت داسي دي: (لا اباه ولا غلامَيه) نو د کافيه ملاصاحب د سيبويه پر قول پر رد کولو وايي: چي دا دواړه د اضافت حقيقيه په وجه مضاف نسي کېدای، او د دې دليل دادی، چي (لفساد المعنى) يعني په داسي

كولو لفظي او معنوي دواړې خرابۍ لازمېږي، په لفظي ډول دوې خرابيانې راځي: ①: كه چېري موږ دا مضاف ومنو، نو د (لا) معرف پر داخلېدل لازمېږي، حال دا چي موږ مخكي وويل: چي (وان كان معرفة وجب الرفع والتكرير) يعني د لائ نفي جنس اسم كه چېري معرفه وي، نو يو خو دا چي هغه اسم به مرفوع وي او دوهم دا چي هلته به (لا) مكرره راغلې وي، حال دا چي دلته دا د واړه نسته.

②: كه چېري موږ په دواړو كي اضافت حقيقيه ومنو يعني (لا ابا له) (لا اباه) او (لاغلامَي له) (لاغلامَيه) ومنو، نو (اباه او غلامَيه) دواړه خو دلائ نفي جنس اسم كېږي، لېكن د خبر لپاره به موږ محذوف عبارت را باسو، كوم چي صحيح نه دي، د دې پر ځاى كه چېري دا مشابه بالمضاف ومنل سي، نو اسم او خبر دواړه په لفظ كي مذكور دي، هغه داسي، چي (ابا) د لائ نفي جنس اسم كېږي، او (له) يې خبر كېږي (وهكذا فى لاغلامَى له).

او معنوي خرابي دا لازمېږي، چي په (لا ابا له وغلاميه) ويلو د متكلم مقصد داسي كېږي، چي د فلاني سړي نسب بلكل معلوم نه دى او د فلاني سړي هيڅ مرپيى نسته، (دا معنا ځكه موږ وكړه، چي نكره كله تر نفې لاندي راسي، نو هغه عموم فائده كوي)، لېكن په دې كي كه چېري موږ اضافت حقيقه ومنو، نو په داسي عبارت سره د متكلم مقصد نه حاصلېږي، ځكه د متكلم مقصد د فلاني سړي د نسب او د هغه د مرپيانو نفې كول دي، لېكن دا عبارت د هغه له ارادې سره نه برابرېږي، ځكه د دې معنا ده چي فلانى سړى معلوم النسب خو دى، لېكن د ده پلار تراوسه لا موجود هم نه دى، دا راز د فلاني سړي مرپيى خو سته، لېكن تراوسه موجود سوى نه دى، حال دا چي د متكلم مقصد دا نه دى.

**ځلورمه خبره**: د لائ نفي جنس له اسم سره تړلې ځلورمه قاعده:

ويحذف كثيرا فى مثل: لا عليك، اى لا بأس عليك: د لائي نفي جنس له اسم سره تړلې دا ځلورمه قاعد وړاندي كېږي، دا قاعده تاسو په هداية النحو كي هم ويلې ده، په عبارت كي له (فى مثل لا عليكَ) څخه هر هغه تركيب مراد دى، په

کوم کي چي د لائ نفي جنس خبر مذکور وي اواسم دکومې قرینه حالیه، یا مقالیه له وجې حذف سوی وي.

: قاعدې تقریر داسي دی، چي کله کومه قرینه حالیه، یا مقالیه موجوده وي، نو د لائ نفي جنس اسم حذفول جائز دي، لکه (لا علیک) دا په اصل کي (لا بأس علیک) و، (بأس) اسم ځیني حذف سو، ځکه چي دلته قرینه سته چي لائي نفي جنس پخپله هم حرف ده او پر چاچي داخله ده هغه هم حرف ده، یعني (علیک)، حال دا چي حرف کله هم پر حرف نه داخلېږي، په خاصه توګه بیا لائ نفي جنس خو صرف پر اسم داخلېږي، له همدې څخه څرګنده سوه، چي دلته یو اسم حذف سوی دی، کوم چي (بأس) دی.

## یو نیویم (۹۱) درس

## د دوولسم منصوب (ماولامشابه بلیس) د خبر بیان

خبر ما ولا المشبهتین بلیس: هو المسند بعد دخولهما وهی لغةً حجازیة واذا زیدت (ان) مع (ما) او انتقض النفی بإلّا او تقدم الخبر بطل العمل واذا عطف علیه بموجب فالرفع.

**ترجمه**: له منصوباتو څخه د (ما) او (لا) خبر هم دي، کوم چي له (لیس) سره مشابه وي، دا هغه دي، چي پر چا داخل سي، هغه مسند کېږي او دا د اهل حجاز لغت دی او کله کله له دوی سره (ما) زیاتېږي، او کله کله د دوی نفي د (الا) په ذریعه ختم کېږي، او کله کله د دوی خبر مقدم کېږي، نو دد وی عمل باطلېږي او کله چي د حرف ایجاب په ذریعه د دوی عطف وسي، نو مرفوع ویل کېږي.

**تشریح**: د نن په سبقه کي شپږ خبرې دي:

①: د ماولا مشابه بلیس د خبر تعریف، ②: د ما او لا له لیس سره مشابهت، ③: په تعریف کي د ذکرسویو قیدونو فائدې، ④: د ماولا مشابه بلیس عمل او پکي اختلاف، ⑤: د ما اولا د عمل نواسخ (له مینځه وړونکي)، ⑥: د ما ولا له خبر سره تړلې یوه قاعده.

### د ماولا مشابه بلیس د خبر تعریف

**لومړۍ خبره:** د ماولا مشابه بليس د خبر تعريف:

خبر ماولا المشبهتين بليس هو المسند بعد دخولهما:

له منصوباتو څخه اخيري منصوب د ماولا مشابه بليس خبر دی، په دې عبارت کې مصنف رحمه الله د ماولا مشبهتين بليس د خبر تعريف بيانوي، چې د ماولا مشابه بليس خبر هغه اسم دی، کوم چې له دوی دوو څخه د يوه تر داخلېدو وروسته مسند وي، لکه (ما زيدٌ قائمًا او لا رجلٌ حاضرًا).

په دې مثالونو کې د ماولا تر داخلېدو مخکې (قائمٌ) او (حاضرٌ) که څه هم مسند وه، لېکن کله چې پر ما اولا داخل سو، نو د دوی مخکنی ترکيب ختم سو، بيا چې کله له نوي سره د دوی ترکيب جوړ سو، نو دوی دواړه مسند جوړ سول.

**د ما اولا له ليس سره مشابهت**

**دوهمه خبره:** د ما اولا له ليس سره مشابهت:

د دې پوره تفصيل د مرفوعاتو په اووم مرفوع (ماولا) مشابه بليس د اسم تر بحث لاندې په (۴۷) درس کې تېر سوی دی، هلته يې وګوره، لنډه خلاصه يې د ادی، چې د (ما اولا) له ليس سره مشابهت په نفې کې او پر جمله اسميه په داخلېدو کې او اسم ته په رفع او خبرته په نصب ورکولو کې دی.

**درېيمه خبره:** په مذکوره تعريف کې د قيدونو فائدې:

خبر ما ولاالمشبهتين بليس: هوالمسند بعد دخولهما: په دې عبارت کې د (هو) ضمير مرجع د ما ولا مشابه بليس خبر دی، کوم چې معرف دی او (المسند بعد دخولهما) يې تعريف دی، بيا په دې تعريف کې (المسند) جنس دی، کوم چې معرف او غير معرف دواړو ته شامل دی او (بعد دخولهما) فصل دی، په دې سره باقي ټول مسندات له تعريف څخه ووتل، ځکه هغه که څه هم مسند دي، لېکن له دې وجې څخه نه دي، چې ما ولا پر داخل سوي دي، بلکې له کومې بلې څخه مسند دي، مثلا يا د افعال ناقصه پر داخلېدو له وجې وي، لکه د (زيدٌ عالمٌ) پر ځای (کان زيدٌ عالمًا) دلته (عالمًا) که څه هم مسند دی، لېکن د (ماولا) د داخلېدو په وجه نه دی، بلکې د (کان) فعل ناقص په وجه مسند دی، دا راز د

(زیدٌ قائم) پر ځای (ان زیدًا قائمٌ) په دې کي هم (قائمٌ) مسند دی، لېکن د (ماولا) له وجې نه، بلکي د (ان) حرف مشبه بالفعل له وجې دی، پاته سو د ما ولا مشابه بلس خبر، نو هغه صرف له دوی دوو ځخه د یوه د داخلېدو په وجه مسند وي.

**څلورمه خبره:** د ماولا مشابه بلیس عمل او پکي اختلاف:

**وهی لغة حجازیة:** په دې مختصر عبارت سره د کافیه ملاصاحب د ماولا مشابه بلیس د عمل او په هغه کي د اختلاف وطرفته اشاره کوي، عمل خو ددوی دواړو دادی، چي دوی خپل اسم ته رفع او خبر ته نصب ورکوي، دا دحجاز مقدس د علماء کرامو مذهب دی، د دې په مقابله کي علماء بنوتمیم وایې، چي ماولا هېڅ عمل نه کوي، له دوی سره دوه دلېلونه دي:

①: ځکه چي دا دواړه لکه څرنګه چي پر اسم داخلېږي، همدا راز پر فعل هم داخلېږي.

②: ځکه چي د بنو تمیم مشهور عربي شاعر زهیر تمیمي په یوه شعر کي دي، کوم چي په هدایة النحو کي هم تېر سوی دی:

و مهفهف کالغصن قلت له انتسب * فأجاب ما قتل المحب حرام

**ترجمه:** د یوې ښانګې په څېر نری ملا لرونکې ته مې وویل، چي خپل نسب خو بیان کړه، هغه په جواب کي وویل: د مین وژل حرام نه دي.

که چېري (ما اولا) عامل وای، نو دا (ماقتل المحب حرامًا) کېدی، حال دا چي دلته (حرامٌ) مرفوع دی، نو معلومه سوه چي دا دواړه عمل نه کوي.

د حجاز مقدس علماء کرامو جواب ورکړی، چي که چېري دا عامل نسي، نو د الله جل جلاله په مبارکه وینا کي (ماهذا بشرًا) نسي ویل کېدای، بلکي (ما هذا بشرٌ) ویل کېږي.

او د مذکوره شعر جواب دادی، چي حضرات محترم! تاسو یو داسي شعر وړاندي کړئ، چي د اهل حجاز د شاعر وي، نو تاسو خو د خپل کور د شاعر قول وړاندي کړی، دا زموږ پر خلاف د دلیل په ډول نسي وړاندي کېدای، اعتبار نلري.

## د ما اولا د عمل له مینځه وړونکي

**پنځمه خبره:** د ما اولا د عمل له مینځه وړونکي:

**له و اذا زیدت ان مع ما څخه واخله تر اخېره پوري په عبارت کي** د کافیه ملاصاحب درې داسي شیان بیانوي، کوم چي د ما اولا عمل له مینځه وړي،

لېکن تر دې مخکې يوه اصل او ضابطې ته غوږ سئ! چې هغه عامل کوم چې له کوم بل عامل سره دمشابهت په وجه عمل کوي، نو هغه ضعیف عامل شمېرل کېږي، تر څو چې په دې کې درې شرطونه موجود وي، نو هغه عمل کوي، لېکن که چېرې له دغو دريو شرطونو څخه يو شرط هم نه وي، نو ددوی عمل باطلېږي:

①: د عامل او معمول ترمینځ به فاصله نه وي، ②: د چا د مشابهت له وجې چې هغه عمل کاوه، هغه مشابهت به باقي وي، ③: په کوم ترتیب سره چې هغه عمل کاوه، هغه ترتیب به هم باقي وي.

اوس نو د نواسخ (د ماولا) د عمل له مینځه وړونکو ته غوږ سئ!

①: وا ذا زيدت ان مع ما: لومړی ناسخ دادی چې که چېرې تر (ما) وروسته (ان) راسي، نو د ما عمل باطلېږي، لکه (ما ان زيدٌ قائمٌ) د دې وجه داده، چې موږ لومړی شرط دا لګولی وچې د عامل او معمول ترمینځ به فاصله نه وي، او دلته فاصله راغلې ده.

**يادونه**: دلته (مع) د (بعد) په معنا ده، لکه په (ان مع العسر يسرًا) کې چې دي، دوهمه خبره داده چې مصنف رحمه الله تر (ما) وروسته صرف د (ان) زيادت ذکر کړی دی، ځکه چې په عربو کې ددې استعمال ډېر لږ دی.

②: او انتقض النفی بالّا: دوهم ناسخ دادی، چې (ماولا) کوم چې نافیه دي که ددوی نفې د (الا) په ذریعه ختم سي، نو ما ولا عمل نسي کولای، ځکه چې په دې کې دوهم شرط (د مشابهت بقا) نسته، لکه څرنګه چې تېر سوه، چې د دوی معنوي مشابهت له (لیس) سره په نفې کې دی او هغه د (الا) په وجه ختم سو، نو ددوی عمل هم ختمېږي، لکه د (مازيدٌ قائمًا) پر ځای (مازيدٌ الا قائمٌ).

③: او تقدم الخبر: دریيم ناسخ دادی، چې د (ما اولا) خبر د دوی پر اسم مخکې سي، نو هم ددوی عمل باطلېږي، ځکه په داسي صورت کې دریيم شرط (د عمل د ترتیب بقا) نسته، لکه د (مازيدٌ قائمًا) پر ځای (ما قائمٌ زيدٌ).

د جمهورو علماؤ مذهب خو همدادی، خو امام یونس نحوي ویلي دي: چي د نفي له انتقاص سره، سره هم ماولا خپل عمل کوي، په دلیل کي ده یو شعر وړاندي کړی دی:

وماالدهر الا مجنونًا بأهله * و ما صاحب الحاجاتِ الا معذَّبًا

دا رازيې یو بل شعر هم وړاندي کړی دی:

وما حق الذی یعثو نهارًا

ویسرق لیله الا نــــکالًا

جمهورو علماؤ جواب ورکړی دی، چي علامه یونس صاحب! په مذکوره دواړو شعرونو کي ستا هیڅ دلیل نسته، ځکه چي تر (مجنونًا، معذّبًا او نکالًا) هر یوه مخکي فعل محذوف دی، نو دغه درې سره اسماء د هماغه محذوف فعل له وجې منصوب دي.

## د ما اولا له خبر سره تړلې یوه قاعده

**ځلورمه خبره**: د ما اولا له خبر سره تړلې یوه قاعده:

واذا عطف علیه بموجب فالرفع: په دې عبارت کي د کافیه ملاصاحب رحمة الله علیه یوه قاعده بیانوي، چي که چېري د (ماولا) مشابه بلیس پر خبر له حروف ایجاب څخه د کوم حرف په ذریعه عطف سوی وي، نو په عامه ډول قاعده خو داده، چي د معطوف او معطوف علیه اعراب یو رنګه وي، لېکن دلته ددې حکم دادی، چي داسي معطوفِ همېشه مرفوع کېږي، لکه (مازیدٌ قائمًا بل قائمٌ)، وجه یې داده: چي (ماولا) دنفي له وجې عمل کاوه، لیکن حرف ایجاب (بل) د (قائمٌ) نفې ختم کړي، کله چي نفې ختم سوې، نو عمل هم ختم سو، کله چي عمل ختم سو، نو دا د معطوف علیه پر محل عطف کېږي، او هغه محلا د (خبر کېدو په وجه) مرفوع و، نو دا هم مرفوع سو.

## قَدْ تَمَّتِ الْمَنْصُوْبَاتُ بِفَضْلِ اللّٰهِ تَعَالٰی وَکَرَمِهٖ

## اَلْمَجْرُوْرَاتُ

**المجرورات**: دا يې په دوو وجو د جمع په صيغه ذکر کړی، که نه مجرور خو يوازي يو (مضاف اليه) دی، نو داسي کېدل پکار وه، چي د مفرد په شکل يې راوړی وای، د جمع په صيغه سره د راوړلو يې شارحينو دوې وجې بيان کړي دي:

①: لومړی وجه داده چي تر دې مخکي (المرفوعات) او (المنصوبات) د جمع په صيغه راغلې وه، له هغوی سره د محض مشاکلت (ورته والي) په وجه دلته هم (المجرورات) د جمع په صيغه سره راوړل سو.

②: دوهمه وجه داده چي مجرور په واقع کي صرف يو يعني مضاف اليه وي، لېکن دغه مجرور بيا څو قسمونه دی (چي تفصيل به يې وروسته درته راسي)، نو هغو قسمونو ته اشاره کول مقصود وه، ځکه يې د جمع په صيغه راوړ.

## د مجروراتو تعريف

**دوهمه خبره:** د مجرورات تعريف:

هو ما اشتمل على علم المضاف اليه: چي مجرور هغه اسم معرب دی، کوم چي د مضاف اليه پر علامه مشتمل وي او هغه علامې ټوټل درې دي:

①: کسره، لکه چي عام اسماء په کسره سره مجرور وي، لکه (مررتُ بزيدٍ او غلام زيدٍ).

②: فتحه، لکه چي په غيرمنصرف کي وي، يعني غيرمنصرف چي کوم اسم وي، نو د هغه جر په فتحه سره راځي، لکه (مررتُ بعمرَ او غلام عمرَ).

③: په ياء سره، بيا دا ياء يا خو به يې ماقبل مفتوح وي، لکه تثنيه او د دې ملحقات، تاسو ويلې دي، لکه (مررتُ برجلَين اثنَين کلَيهما) او يا به يې ماقبل مکسور وي، لکه په جمع مذکر سالمه او د هغې په ملحقاتو کي، تاسو ويلي دي، لکه (مررتُ بمسلِمين عشرِين اولی علمٍ).

## د مضاف اليه تعريف او د هغه وضاحت

**دريمه خبره:** د مضاف اليه تعريف او د هغه وضاحت:

والمضاف اليه کل اسم: فاضل مصنف رحمة الله عليه په مذکوره عبارت کي د مضاف اليه تعريف راته کوي، چي مضاف اليه هغه اسم حقيقي يا اسم حکمي دی، د کوم طرفته چي د يو شي نسبت د حرف جر په واسطه سره وي او حرف جر په لفظ کي وي، لکه (مررت بزيدٍ) وګوره! دلته د (مررتُ) فعل نسبت د (باء) حرف جر په

ذریعه د زید وطرفته سوی دی، د نحوېینو په اصطلاح کي دېته جار مجرور ویل کېږي، یا هغه حرف جر تقدیري وي، یعني اثر یې په لفظ کي باقي وي، لکه (غلام زیدٍ) دا په اصل کي (غلام لزیدٍ) و، دلته هم د غلام نسبت د لام مقدره په ذریعه د زید وطرفته سوی دی، د نحوېینو په اصطلاح کي دېته مضاف الیه ویل کېږي، د (مرادًا) په قید سره د (صُمتُ یومَ الجمعةِ) وغیره ترکیبونه خارج سوه، ځکه چي په دغو کي که څه هم لام مقدر وي، خو په وروسته کي یې اثرباقي نه پاتېږي.

څرنګه چي موږ د مصنف رحمة الله علیه د قول (کل اسم) مطلب پورته بیان کړ، چي مضاف الیه هغه اسم حقیقي، یاحکمي دی، نو په دې کي موږ اسم حقیقي او حکمي ځکه زیات کړي، چي په (یوم ینفع الصادقین صدقهم) او (یوم ینفخ فی الصور) کي ینفع او ینفخ کوم چي مضاف الیه جوړېږي، سره له دې دا دواړه فعل دي او بیا هم د حکمي په قید کي داخلېږي، ځکه ینفع او ینفخ که څه هم په لفظ دوړل فعل دي، لېکن په حکمي دوړل دا اسم دي، ځکه نو دوی د مصدر په تاویل اوړي، د آیتونو عبارتونه داسي کېږي: (یوم نفع الصادقین صدقهم او یوم النفخ فی الصور).

## د حرف جر تقدیري لپاره د شرطونو بیان

**څلورمه خبره**: د حرف جرتقدیري لپاره د شرطونو بیان:

فالتقدیر شرطه ان یکون المضاف اسمًا مجردًا تنوینه: په دې عبارت کي مصنف رحمة الله علیه د حرف جرتقدیري لپاره دوه شرطونه بیانوي، یعني هغه اضافت کوم چي په حرف جرتقدیري سره وي، د هغه لپاره دوه شرطونه دي:

(۱): مضاف اسم حقیقي وي، ځکه د اضافت چي کوم مقاصد دي، یعني تعرېف، تخصېص او تخفېف دا په اسم حقیقي پوري خاص دي.

(۲): دوهم شرط دادی، چي هغه اسم مضاف به له تنوین څخه خالي وي، مصنف رحمة الله علیه صرف د تنوین ذکر کړی، حال دا چي مضاف خو به له نون تثنیه او نون جمع څخه هم خالي وي، لېکن د دغو دوو ذکر یې ونکړ، دا ځکه چي تنوین په دې

تولو کي اصل دی او نونین یې فرع دي، نو د اصل په ذکر کولو کي د فرع ذکر په ضمني توګه پخپله راځي.

**سوال:** د مضاف له تنوین او نونین څخه خالي کېدل ولې ضروري دي؟

**جواب:** ځکه چي تنوین د شیانو پرپوره والي دلالت کوي او اسم تام هغه وي، چي نوریې اضافت نسي کېدای، یعنيٌ هغه انفصال غواړي او مضاف مضاف الیه اتصال غواړي، نو معلومه سوه، چي دغه دواړه یو له بل سره نسي یوځای کېدای، له همدې وجې چي له اسم تام څخه تنوین یا نونین لیري کړل سي، تام کېدل یې ختم سي، نو د دوی دواړو جمع کېدل ممکن کېږي، خلاصه دا سوه چي د دې دواړو د جمع کېدو د ممکن کېدو لپاره د نون تنوین او نون تثینه او نون جمع حذفول واجب دي.

**لاجلها:** چي له مضاف څخه د تنوین وغیره حذفولو باعث (لامل) همدا اضافت وي، لکه د (غلامٌ) پر ځای (غلامُ زید) او د (ضاربان) پر ځای (ضاربا زید) او د (ضاربون) پر ځای (ضاربوزیدٍ) لېکن هغه تنوین او نونین کوم چي د اضافت پر ځای له کومې بلې وجې غورزېدلي وي، نو هغه زموږ په بحث کي شامل نه دي، لکه د (غلامٌ) پرځای (الغلام) ویل کېدای سي، بیا ددې اضافت نسي کېدای، مثلا (الغلام زیدٍ) نسي ویل کېدای، ځکه چي (الغلام) که څه هم له تنوین څخه خالي دی، لېکن ددغه خالي والي باعث اضافت نه دی، بلکي الف اولام دی، دا رازد (ضاربٌ) پر ځای (الضارب) ویل کېدای سي (الضارب زید) نسي ویل کېدای.

## دري نېویم (۹۳) درس د اضافت معنویه بیان

وهی معنویة ولفظیة، فالمعنویة ان یکون المضاف غیرصفة مضافةٍ الی معمولها، وهی اما بمعنی اللام فی ماعدا جنس المضاف وظرفه واما بمعنی (من) فی جنس المضاف او بمعنی (فی) فی ظرفه وهو قلیلٌ، مثل: غلام زیدٍ، وخاتم فضّةٍ وضربُ الیوم و تفید تعریفًا مع المعرفة وتخصیصًا مع النکرة وشرطها تجریدالمضاف من التعریف وما اجازه الکوفیون من الثلاثة الاثواب وشبهه من العدد ضعیفٌ.

**ترجمه**: او هغه (اضافت په تقدیر د حرف) معنوي هم وي او لفظي هم، یا معنوي دادی، په کوم کي چي مضاف داسي صیغه صفت نه وي، کومه چي د خپل معمول وطرفته مضاف وي او هغه یا خو په معنا د لام وي، له دغو صورتونو پرته چي چیري مضاف الیه د مضاف له جنس څخه وي، یا د مضاف الیه لپاره ظرف وي، یا هغه په معنی د (مِن) وي کله چي مضاف الیه د مضاف له جنس څخه وي، یا په معنا د (فی) وي، کله چي مضاف الیه د مضاف لپاره ظرف وي او دا قلیل الاستعمال ده، لکه (غلام زید او خاتم فضة او ضرب الیوم) او دا (اضافت معنویه) په معرفه کي تعریف فائده کوي او په نکره کي تخصیص فائده کوي او شرط یې دادی، چي مضاف به یې له تعریف څخه خالي وي او کوم چي کوفیینو په (الثلاثة الاثواب) او داسي نورو ترکیبونو کي جائز بللی دی، هغه ضعیف دی.

**تشریح**: د نن په سبق کي په مختصره توګه شپږ خبري دي:

①: د اضافت قسمونه او د هر یوه د تسمیه وجه، ②: د اضافت معنویه تعریف، ③: د اضافت معنویه فائده، ④: د اضافت معنویه قسمونه، ⑤: د اضافت معنویه شرطونه، ⑥: د کافیه د ملاصاحب رحمه الله علیه پر کوفیینو رد.

**د اضافت قسمونه او د هر یوه د تسمیه وجه**

**لومړۍ خبره**: د اضافت قسمونه او د هر یوه د تسمیه وجه:

وهی معنوية ولفظية: د کافیه ملاصاحب رحمه الله علیه وایي: چي اضافت تقدیري، (یعني هغه اضافت چي د حرف جر په تقدیر سره وي) هغه پر دوه قسمه دی: ①: اضافت معنویه، ②: اضافت لفظیه.

اضافت معنویه ته معنویه ځکه ویل کیږي، چي دا د معنی وطرفته منسوب وي، یعني د دغه اضافت په وجه په مضاف کي تعریف او تخصیص پیدا کیږي، یعني دده اضافت که چیري د نکره وطرفته سوی وي، نو تخصیص فائده کوي، لکه (غلام رجل)، دغه اضافت د غلام په معنی کي د تقلیل معنا پیداکړه، له (رجلٌ) سره یې خاص کړ، نو اوس دغه امرأة یعني کومه ښځه غلام ته نه شاملیږي او که چیري دده اضافت د معرفه وطرفته سوی وي، نو تعریف فائده کوي، لکه

(غلام زيد) نو د دې غلام مصداق صرف د زيد غلام کېږي او که چېرې د زيد څو غلامان وي، نو هم له هغوی څخه يو خاص غلام مرادېږي او دا له دواړه قسمه معناوو سره تعلق لري، له همدې وجې ورته اضافت معنويه ويل کېږي، پردې سربېره دېته اضافت حقيقيه هم ويل کېږي.

او اضافت لفظيه ته لفظيه ځکه ويل کېږي، چې په دې سره صرف په لفظ کې تخفيف راځي، يعني که اسم منون وي، نو تنوين غورزول کېږي او که نون د تثنيه او نون د جمع وي، نو هغه غورزول کېږي او کلمه خفيفه (سپکېږي).

څرنګه چې د اضافت معنويه دوې فائدې وي او د لفظيه يوه فائده، نو اضافت معنويه يو ډول شرافت او لوړاوی پيداکړ، له همدې وجې په تعريف کې مخکې سو، چې په را روانه خبره کې راځي.

## داضافت معنويه تعريف

**دوهمه خبره:** د اضافت معنويه تعريف:

فالمعنوية ان يكون المضاف غير صفة مضافة الى معمولها: په دې عبارت کې مصنف رحمه الله عليه د اضافت معنويه تعريف راته بيانوي، چې اضافت معنويه هغه اضافت دی، په کوم کې چې مضاف داسې صيغه صفت نه وي، کومه چې د خپل معمول وطرفته مضاف وي، دلته له صيغه صفت څخه مراد اسم فاعل، اسم مفعول، صفت مشبه او اسم تفضيل دي او له معمول څخه مراد فاعل او مفعول به دي، له دې تعريف څخه د اضافت معنوي درې صورتونه وفهمول سوه:

①: نه به مضاف صيغه د صفت وي او نه به د خپل معمول وطرفته مضاف وي، لکه (غلام زيدٍ).

②: مضاف به صيغه دصفت وي، خو د خپل معمول وطرفته به مضاف نه وي، بلکې د غير معمول وطرفته به مضاف وي، لکه (كريم البلد) دلته (كريم) صيغه د صفت ده، خو (البلد) يې نه فاعل دی او نه مفعول، بلکې ظرف او مفعول فيه دی.

③: مضاف صيغه د صفت نه وي او دخپل معمول وطرفته مضاف وي، لکه (ضرب زيدٍ) دلته ضرب صيغه د صفت نه ده، بلکې مصدر دی او د خپل معمول

يعني زيد مفعول به وطرفته مضاف ده، نو په کوم اضافت کي چي دغه درې شرطونه پر ځای وي، هغه ته اضافت معنويه ويل کېږي.

**داضافت معنويه قسمونه**

**درېيمه خبره**: د اضافت معنويه قسمونه:

وهى اما بمعنى اللام فى ماعدا جنس المضاف وظرفه....الخ : د کافيه ملاصاحب رحمه الله په دې عبارت کي د اضافت معنويه دوه قسمونه راته بيانوي: ①: اضافت به معنا د لام، ②: اضافت په معنا د (من)، ③: اضافت په معنا د (فى).

①: وهى اما بمعنى اللام: دېته اضافت لاميه او اضافت لميه هم ويل کېږي، اضافت لاميه هغه اضافت معنويه دی په کوم کي چي مضاف اليه نه خو د مضاف له جنس څخه وي او نه د مضاف لپاره ظرف وي، لکه (غلام زيدٍ) دا په لام حرف جر تقديري سره مضاف دی، ځکه په اصل کي دا (غلام لزيد) و، ګوره! دلته مضاف اليه (يعني زيد) د مضاف يعني (غلام) له جنس څخه هم نه دی او ورته ظرف هم نه ده، له جنس څخه د کېدو مطلب دادی، چي د مضاف اليه اطلاق پر مضاف او غير مضاف دواړو کېږي، دا راز د مضاف اطلاق هم پر مضاف اليه او غير مضاف اليه دواړو کېږي، لکه (خاتم فضة) دا پر (خاتم) هم صادقېږي او پر غير خاتم هم، پر فضه اوغير فضه دواړو صادقېږي، ځکه ګوتمۍ د سپينو زرو هم راځي او د غير سپينو زرو هم، دا راز سپين د ګوتمۍ هم وي او دغير ګوتمۍ هم، لېکن په (غلام زيد) کي دا راز نسي کېدای، ځکه د زيد اطلاق پر غلام نه کېږي، ځکه چي هغه ازاد دی او دا غلام او نه ورته ظرف دی.

②: واما بمعنى من فى جنس المضاف: چي اضافت په معنا د (من) هغه اضافت دی، په کوم کي چي مضاف اليه د مضاف له جنس څخه وي، لکه (خاتم فضة) دا په (من) حرف جر تقديري سره مضاف دی، ځکه په اصل کي (خاتم من فضة) و د دې تفصيل مخکی تېر سوی دی، دېته اضافت (مِنِي او بيانيه) هم ويل کېږي.

③: او بمعنی فی فی ظرفه: د کافیه ملاصاحب رحمة الله عليه د اضافت معنویه درېیم قسم راته بیانوي چي اضافت په معنا د (فی) هغه اضافت دی، په کوم کي چي مضاف الیه د مضاف لپاره ظرف وي، هغه که ظرف زمان وي، که مکان وي، لکه (صلاة اللیل او ضرب الیوم) دا په (فی) حرف تقدیري سره مضاف دی، ځکه په اصل کي (صلاةٌ فی اللیل او ضربٌ فی الیوم) وو، دلته (لیلٌ او الیوم) مضاف الیه د (صلاةٌ او ضربٌ) مضاف لپاره ظرف دي، دېته اضافت (فوي) او اضافت (ظرفیه) هم ویل کېږي.

وهو قلیل: د کافیه ملاصاحب رحمة الله عليه وايي: چي د اضافت معنوي درېیم قسم عرب حضرات ډېر لږ استعمالوي، اکثره علماء نحوي د دغه لږ استعمال له وجې دا اضافت په معنا د (لام) بللی دی.

### دا اضافت معنوي فائده

**څلورمه خبره: دا اضافت معنوي فائده:**

و تفید تعریفًا مع المعرفة وتخصیصًا مع النکرة: په دې عبارت کي د کافیه ملاصاحب دا اضافت معنوي یوه فائده ذکر کوي، لکه چي د لومړۍ خبرې په ضمن کي تېر سول، چي اضافت معنویه تعریف یا تخصیص فائده کوي، یعني که چېري مضاف الیه معرفه و، نو په اضافت سره مضاف معرفه کېږي، لکه (غلام زید او کتاب بکر) دلته غلامٌ او کتابٌ دواړه نکره وو، خو کله چي یې دّ زید او بکر وطرفته اضافت وسو، نو دواړه معرفه سول او که چېري مضاف الیه نکره و، نو د اضافت په وجه په مضاف کي تخصیص پیداکېږي، لکه (غلام رجلٍ او کتاب امرأةٍ) د دې تفصیل مخکي تېر سوی دی.

### دا اضافت معنویه شرطونه

**پنځمه خبره: د اضافت معنویه شرطونه:**

وشرطها تجرید المضاف من التعریف: مصنف رحمة الله عليه د اضافت معنویه د صحیح کېدو لپاره یو شرط بیانوي، هغه داچي اضافت معنوي هغه مهال صحیح کېږي، کله چي مضاف د اضافت په وخت کي له تعریف څخه خالي وي، یعني نکره وي،

ځکه که چېري مضاف معرفه وي، نو د ده مضاف الیه به له دوو حالونو څخه خالي نه وي، یا به هغه هم معرفه وي، یا به نکره وي، که چېري هغه هم معرفه وي، نو د معرفه د معرفه وطرفته په مضاف کېدو سره تحصیل د حاصل لازمېږي، کوم چي قبیح دی (ځکه اجتماع د نقیضینو لازمېږي) او که چېري مضاف الیه نکره وي، نو حصول اعلیٰ د (معرفه) په موجودګی کي ادنیٰ یعني د (نکره) طلبول لازمېږي او دا هم صحیح نه دي، نو داخبره ثابته سوه، چي د مضاف له تعریف څخه خالي کېدل ضروري دي.

**شپږمه خبره:** د کافیه د ملاصاحب د کوفي پر نحاتو رد:

و ما اجازه الکوفیون من الثلاثة الاثواب و شبهه من العد ضعیف: د کوفیېنو علماؤ مذهب دادی، چي (الثلاثة ا لاثواب) او که دده په ډول ترکیب وي، یعني مضاف معرفه وي، یا کوم عدد معرف باللام وي، بیا دده اضافت د تمیېز وطرفته وسي، لکه الخمسة الدراهم والمائة الدینار وغیره دا ټول جائز دي، لېکن مصنف علامه ابن حاجب رحمة الله علیه په مذکوره عبارت سره پر دوی رد کوي، چي (الثلاثة الاثواب) او (الخمسة الدراهم او المائة الدینار) او ددوی په څېر ترکیب ته صحیح ویل بلکل ضعیف قول دی، ځکه چي دا عقلا هم صحیح نه دي، چي له دې څخه تحصیل د حاصل لازمېږي او ا ستعمالا هم صحیح نه دی، ځکه چي له فصحاؤ عربو څخه دا راز هېڅ خبره ثابته نه ده، بلکي عدد چي کله د خپل تمیېز وطرفته مضاف وي، نو پکي د الف لام پرېښودل ثابت دي، خو د فصحاؤ عربو په کلام کي چي ځای ځای عدد معرف باللام راغلی وي، او بیا یې اضافت سوی وي، نو د هغه په هکله ویښ اوسئ، چي هغه مضاف الیه نه وي، بلکي عدد معرف باللام مبدل منه یا معطوف جوړېږي او تر هغه وروسته معرف باللام اسم یې بدل الکل یا عطف بیان جوړېږي.

پر دې سوال کېږي، چي کله داسي ترکیب له سره ناجائز دی، نو د کافیه ملاصاحب (ضعیف) ولې وویل، ولې یې (لایجوز یا لا یصح) ونه ویل؟

Scanned by CamScanner

ددې جواب دادی، چي له فصحاؤ عربو څخه ځیني داسي مثالونه ثابت دي، کوم چي مبدل منه یا معطوف دي، نو دلته مذکوره (الثلاثة الأثواب) مثال چونکه په شکل له هغه سره مشابه دی، نو د مشابه په احترام کولو مې ورته صرف (ضعیف) وویل او (لایجوز، یا لایصح) مې ونه ویل.

## څلورم نيويم (۹۴) درس د اضافت لفظيه بيان

واللفظية ان يكون المضاف صفةً مضافةً الى معمولها، مثل: ضارب زيدٍ وحسن الوجه، ولاتفيد الا تخفيفًا فی اللفظ و من ثم جاز: مررت برجل حَسَن الوجه وامتنع مررت بزيد حَسَن الوجه وجازالضاربا زيدٍ والضاربو زيدٍ وامتنع الضارب زيدٍ، خلافًا للفراء وضعف الواهب الهِجانِ وعبدها وانما جاز: الضارب الرجل حملا على المختار فی الحسن الوجه والضاربک وشبهه فيمن قال: انه مضاف حملا على ضاربک.

**ترجمه**: او د اضافت لفظیه علامه داده، چي مضاف داسي صیغه صفت وي، چي د خپل معمول وطرفته مضاف وي، لکه (ضارب زيد او حسن الوجه) او اضافت لفظي یوازي په لفظ کي تخفیف فائده کوي، له همدې وجې (مررت برجل حسن الوجه) جائز دي او (مررت بزيدحسن الوجه) ناجائز دي، دا راز (الضاربا زيد او الضاربو زيد) هم جائز دي، لېکن (الضارب زيد) ویل صحیح نه دي، دا خبره د فراء خلاف ده او (الواهب المائة الهجان وعبدها) ضعیف دی او (الضارب الرجل) صرف له دې وجې جائز دي، چي د (الحسن الوجه) پر مختاره وجه محمول ده او جائز دي (الضاربک) او ددې په مثل د هغو خلکو په نزد چي دا مضاف بولي، یا یې پر (الضاربک) حمل کوي.

**تشریح**: د نن په سبقه کي پنځه خبرې دي:

①: د اضافت لفظي تعریف، ②: د اضافت لفظي فائده، ③: د اضافت لفظي پر تعریف تفریعات، ④: د امام افراء له جمهورو علماؤ سره اختلاف، ⑤: د جمهورو علماؤ له لوري جواب.

## داضافت لفظیه تعریف

**لومړۍ خبره**: د اضافت لفظیه تعریف:

واللفظیة ان یکون المضاف صفةً مضافة الیٰ معمولها:

مصنف رحمة الله علیه د اضافت معنوي له تعریف او د هغه له تفصیل څخه فارغ سو، اوس د اضافت لفظیه تعریف او د هغه پوره تفصیل بیانوي، نو په عبارت مذکوره کي د هغه تعریف بیانېږي، چي اضافت لفظیه هغه ته وایې، چي مضاف صیغه د صفت وي او د خپل معمول وطرفته مضاف وي، لکه په (ضارب زیدٍ) کي (ضاربٌ) صیغه د صفت مضاف ده د خپل معمول (زید) وطرفته کوم چي مفعول به جوړېږي او په (حسن الوجه) کي (حسنٌ) صیغه دصفت شبه مضاف ده د خپل معمول (الوجه) و طرفته، کوم چي یې فاعل جوړېږي.

**دوهمه خبره**: د اضافت لفظیه فائده:

ولا تفید الا تخفیفًا فی اللفظ: مصنف رحمة الله علیه په دې عبارت کي د اضافت لفظي فائده را ته بیانوي، چي اضافت لفظیه صرف تخفیف په لفظ یعني د کلمې اسانه جوړول فائده کوي او د معنا په اعتبار سره هیڅ فائده نلري، بیا د تخفیف فی اللفظ درې صورتونه دي، ①: صرف په مضاف کي تخفیف، بیا دا تخفیف یا خو د تنوین د حذف په ذریعه وي، لکه (ضارب زید) دا په اصل کي (ضاربٌ زیدًا) و، د اضافت په وجه تنوین ځیني و غورزېد، نو (ضاربُ زیدٍ) سو، یا دا تخفیف د نون تثنیه او نون جمع په حذف کېدو سره وي، لکه (ضاربازیدٍ) چي په اصل کي (ضاربان زیدًا) و او (ضاربوازیدٍ) چي په اصل کي (ضاربون زیدًا) و.

②: یا تخفیف صرف په مضاف الیه کي وي، لکه (زیدالقائم الغلام) چي په اصل کي (زیدالقائم غلامه) و، غلامه د مضاف په مضاف کېدو په وجه ضمیر ځیني حذف کړل سو او په القائم کي ضمیر مستتر ومنل سو.

④: کله کله تخفیف په مضاف او مضاف الیه دواړو کي وي، لکه (حسن الوجه) چي په اصل کي (حسنٌ وجهه) و، د اضافت په وجه د (حسنٌ) تنوین حذف سو او له (وجهه) مضاف الیه څخه هم ضمیر حذف کړل سو، په عوض کي الف لام تعریف پر راغی، نو (حسن الوجه) سو.

**درییمه خبره:** د اضافت لفظیه پر تعریف تفریعات:

ومن ثم جاز مررت برجل حسن الوجه: زما خوږو طالبانو! تاسو به په اصول الشاشي کي ټول تفریعات وواياست، نن د کافیه له ملاصاحب څخه یو دوه تفریعات واورئ:

لکه چي په مخکني عبارت کي موږ وويل چي اضافت لفظیه تخفیف فائده کوي، نو د مفهوم مخالف په ډول له دې څخه دا خبره معلومېده چي اضافت لفظي تعریف او تخصیص نه فائده کوي، نو دا دوې خبرې کېږي، یوه دا چي اضافت لفظیه فائده کوي، دوهمه دا چي اضافت لفظیه تخصیص او تعریف نه فائده کوي، له دې دواړو څخه پر هره یوه خبره مصنف رحمه الله علیه یوه تفریع کړې ده:

لومړۍ تفریع پر دوهمه خبره:

**ومن ثم جاز:** مررت برجل حَسَن الوجه وامتنع مررت بزید حَسَن الوجه: په دې عبارت کي مصنف رحمه الله علیه پر هغه خبره چي اضافت لفظیه تعریف نه فائده کوي یوه تفریع کوي، چي د (مررت برجل حسن الوجه) ترکیب خو صحیح دی، لېکن د (مررت بزید حسن الوجه) ترکیب صحیح نه دی، وجه یې داده، چي په (مررت برجل حسن الوجه) کي (رجلٌ) موصوف دی او (حسن الوجه) مضاف الیه صفت دي او د موصوف وصفت تر مینځ مطابقت ضروري وي او هغه دلته سته، ځکه چي رجلٌ هم نکره دی او (حسن الوجه) هم نکره دی، ځکه اوس موږ وويل چي اضافت لفظیه تعریف نه فائده کوي، نو (حسن الوجه) تر اوسه هم نکره پاته دی.

او د (مررت بزید حسن الوجه) ترکیب ځکه صحیح نه دی، چي (زیدٌ) موصوف دی او معرفه ده او (حسن الوجه) یې صفت دی او نکره دی، نو د موصوف او صفت تر مینځ د مطابقت نه راتلو له وجې دا ناجائز سو.

دوهمه تفریع پر لومړی خبره:

وحاز الضاربا زیدٍ والضاربو زید وامتنع الضارب زیدٍ: پر لومړی خبره (یعني اضافت لفظیه تخفیف فائده کوي) تفریع کوي، چي (الضاربا زیدٍ او الضاربو زیدٍ) دا دواړه ترکیبونه صحیح دي، لیکن د (الضارب زیدٍ) ترکیب صحیح نه دی، لومړی دواړه ځکه صحیح دي، چي په دواړو کی د اضافت له وجې تخفیف راغلی دی، یعني له دواړو څخه نون د تثنیه او د جمع حذف سوی دی، دلیل یې دادی، چي که چېري موږ د دې دواړو اضافت ختم کړو (زیدٌ) ځیني لیري کړو، نو له الف لام سره سره هم دوی باقي پاتېږي، لکه (الضاربان او الضاربون)، نو له دې څخه معلومه سوه چي له دوی څخه نون (کوم چي غورزېدلی دی) هغه د اضافت په وجه دی، نه د الف په وجه.

د دې په مقابله کي د (الضارب زید) ترکیب ځکه صحیح نه دی، چي دلته د اضافت په وجه هېڅ تخفیف نه دی راغلی، ځکه له الضارب څخه چي کوم تنوین غورزېدلی، هغه د اضافت په وجه نه، بلکي د الف لام په وجه دی، ځکه که چېري موږ دده اضافت ختم هم کړو، بیا هم پر الضارب تنوین نه راځي، نو معلومه سوه چي د تنوین نه راتلل د الف‌لام په وجه دي، نه چي د اضافت په وجه سره.

څلورمه خبره: د امام فراء له جمهورو سره اختلاف:

له خلافًا للفراء څخه واخله تر حملا علی ضاربک پوري په عبارت کي مصنف رحمه الله علیه د امام فراء له جمهورو سره اختلاف او د امام فراء پر خپله دعوه څلور دلیلونه او د جمهورو له لوري هغه ته چوپ کوونکي جوابونه بیانوي:

خلافًا للفراء: په دې کي د امام فراء اختلاف دی، چي د الضارب زید په څېر چي کوم ترکیب وي، هغه صحیح دی، پر دې امام فراء څلور دلیلونه وایې:

د امام فراء لومړی دلیل: لومړی دلیل دا چي په الضارب کي الف لام تر اضافت وروسته راغلی دی، نو دده تنوین د اضافت په وجه حذف سوی دی، نه چي د الف لام په وجه سره.

**د جمهورو له لوري جواب:**

جمهور علماء نحوه د دې دوه جوابونه ورکوي: لومړی هغه چي تېرسو، چي د (الضارب زید) اضافت که چېري ختم هم سي، نو بیا هم پر ده تنوین نه راځي، نو معلومه سوه، چي دا د الف لام په وجه حذف سوی، نه دا ضافت په وجه.

دوهم جواب دا چي ستا دا ویل چي اضافت تر دخول الف لام مخکي دی دا دعوی' بېله دلېل څخه ده، ځکه چي که چېري ظاهرته وکتل سي، نو دخول د الف لام مخکي معلومېږي، ځکه لام تعرېف د ذات اسم د تحقېق لپاره راځي او اضافت د وصف اسم یعني د تخفېف د تحقېق لپاره راځي، یعني د الف لام تړاو له ذات اسم سره دی او د اضافت تعلق د اسم له وصف سره دی او دا ښکاره خبره ده، چي ذات پر وصف مقدم وي، نو معلومه سوه، چي د الف لام داخلېدل تر اضافت مخکي دي.

**دامام فراء دوهم دلېل:**

امام فراء دوهم دلېل د عربي د فصېح او بلېغ شاعر میمون بن قیون اعشی یو شعر وړاندي کوي:

الواهب المائة الهجان وعبدِها

عوذًا یزجّی خلفها اطفـــالها

**ترجمه:** زما د ممدوح د سخا دا حال دی، چي سل سپېني اوښې یې د هغوی له اوښپه سره وبخښل، په داسي حال کي چي د دغو اوښو نوي بچیان پیدا سوي وه او او د دوی تر شایې پسې شړل.

**د استشهاد محل:** په مذکوره شعر کي عبدها پر المائة عطف ده او قاعده ده چي څوک د معطوف علیه فاعل وي، هماغه د معطوف هم وي، نو الواهب لکه څرنګه چي د المائة وطرفته مضاف دی، دا رازد عبدها وطرفته هم مضاف دی، نوګواکی چي عبارت داسي سوه (الواهب المائة الهجان والواهب عبدها) نو کله چي د الواهب اضافت د عبدها وطرفته وسو او فصحاؤ و بلغاؤ دا صحېح هم ومانه، نو د (الضارب زید) اضافت هم صحېح کېدل پکار دي، ځکه چي هغه هم دا راز ترکېب دی.

**د جمهورو له لوري جواب:**

د کافیه له ملاصاحب سره چونکه د الفاظو ذخیره ډېره کمه ده، ځکه یې نو فراء ته د جمهورو له لوري مختصر جواب ورکړی، چي (وضعف الواهب المائة الهجان وعبدِها) یعني دا قول ضعیف دی، ځکه په دې کي مذکوره اضافت تخفیف نه فائده کوي، لکه چي په (الضارب زید) کي یې نه فائده کاوه.

دلته یو سوال کېدای سي، چي محترمه! کله چي تا د (الواهب عبدها د الضارب زید) مثل وګاڼه، نو هلته خو تا ویلې وه، چي (وامتنع الضارب زید) یعني د (الضارب زید) ترکیب بلکل نا جائز دی او دلته ته وایې، چي (وضعف الواهب المائة الهجان و عبدها) یعني دا ترکیب جائز خو دی، لېکن جواز یې ضعیف دی.

د دې جواب دادی، چي دا دواړه اضافتونه امام فراء یو ډول بللي دي، لېکن په حېقت کي دا یو ډول نه دي، ځکه چي په (الضارب زید) کي د معرف باللام اضافت د غیر معرف باللام وطرفته بېله واسطې سوی دی او د اعشی په قول کي په واسطه د معطوف علیه اضافت سوی دی، نو په دې حیثیت سره چي معطوف بجمیع الوجوه د معطوف علیه په حکم کي نه وي، دا ترکېب جائز سو او په دې حیثیت سره چي معطوف په بعضو وجو کي د معطوف علیه په حکم کي وي، نو دا ضعیف سو، په خلاف د (الضارب زید) چي په دې کي بېله واسطه کېدو په وجه دا دواړه حیثیتونه نسته، نو په دې کي عدم جواز متعین و.

د امام فراء د دلیل دوهم جواب دادی، چي تا (واو) عاطفه بللی دی، حال دا چي (واو) عاطف نه، بلکي په معنا د (مع) دی او (واو) چي کله په معنا د مع سي، نو (عبدها) مفعول معه جوړېږي، نه چي مضاف الیه.

درېیم جواب دادی، چي که چېري مورږ دا واو عاطفه هم ومنو، بیا هم صحیح دی، لېکن په دې وخت کي ستا لپاره بیا هم حجت نه کېږي، ځکه ډېر وختونه د عطف په ذرېعه یو شی ذکر سي، خو هغه صحیح وي، لېکن که چېري هماغه شی بېله عطف څخه وي، نو صحیح نه وي، لکه (ربّ شاة وسخلتها) په دې کي (ربّ) د

عطف په ذريعه پر (سخلتها) داخل سوی دی، حال دا چي قاعده ده، چي (رب) صرف پر نکره داخلېږي، نو دلته هم همداسي ده، چي ښيله عطف څخه داسي اضافت ناجائز دی، لکه په (الضارب زيد) کي چي دی او په عطف سره جائز دی، لکه د اعشی په قول کي چي تېر سو.

**يادونه①**: مذکوره شعر هغه مهال ضعيف دی، کله چي (عبدها) مجرور وويل سي، خو که چېري د (المائة) پر محل عطف سي، منصوب وويل سي، يا (واو) په معنا د (مع) سي، دده مفعول معه جوړ سي، منصوب وويل سي، نو بيا دا ضعيف نه دی، لېکن د امام فراء لپاره بيا هم دلېل نسي جوړېدای.

**يادونه ②**: په شعر کي (الواهب) خبر دی د مبتدا محذوف يعني (ممدوحی)، (الهجان) په معنا د (اوښو) دا لفظ د (فُلکٌ) په څېر د واحد او جمع دواړو لپاره راتلای سي، که چېري د (قتال) پر وزن فرض کړل سي، نو دا مفرد کېږي، لکه چي وويل سي: (ناقة هجان) او که پر وزن د (رِجالٌ) سي، نو دا جمع کېږي ، لکه (نوق هجان)، (عوذًا) دا د (عائذ) جمع دی په معنا د نوي پيداسوي جونګي دی، (يُزَجَّى) د زجّی يُزجّی تزجية د تفعېل له باب څخه د مضارع صيغه ده په معنا د (د شړلو او څرولو) دی، يزجّی په صيغه د معلوم او مجهول دواړو ويل کېږي، په صيغه د معلوم چي سي، نو (اطفالَهَا) د مفعوليت پر بناء منصوْب کېږي او که مجهول سي، نو د نائب فاعل کېدو په وجه مرفوع کېږي.

**د امام فراء دريېم دلېل:**

د امام فراء دريېم دلېل دا دی، چي د (الضارب زيد) ترکېب د (الضارب لارجل) په دول دی، ځکه په دواړو ترکېبونو کي مضاف اسم فاعل او مضاف اليه معرفه دی، نو چي کله د (الضارب الرجل) په څېر ترکېب د نحاتو په اتفاق جائز دی، نو د (الضارب زيد) ترکېب هم جائز کېدل پکار دی.

**د جمهورو له لوري جواب:**

د کافيه ملاصاحب د جمهورو له خوا په جواب کي ځان د هغوی ترجمان جوړ کړی، جواب يې ورکړی، چي (وانما جاز الضارب الرجل حملًا على المختار فی الحسن الوجه) يعني محترمه! د (الضارب الرجل) د ترکيب د صحيح کېدو دليل بل يو دی او هغه دادی، چي موږ دا د (الحسن الوجه) پر مختار قول (کوم چي د مجرور ويلو دی) حمل کړی دی، حال دا چي د قياس غوښتنه داوه چي دا هم جائز نه سي او د دې پر هغه د حمل کولو وجه داده، چي دا دواړه په دوو شيانو کي مشترک دي:

①: په دواړو ترکيبونو کي مضاف صيغه د صفت ده او معرف باللام هم ده، ②: په دواړو کي مضاف اليه اسم جنس او معرف باللام ده، حال دا چي په (الضارب زيد) کي مضاف خو مشابهت ورسره لري، لېکن په مضاف اليه کي غير معرف باللام او اسم علم دی، نو مطابقت تامه يې ترمينځ نه راغی.

### د امام فراء څلورم دليل:

کله چي د امام فراء مخکني ټول دليلونه کمزوري ثابت سو، نو اوس د جمهورو کورته راغی له هغه کور څخه يې خبره را پورته کړه، چي خير دی جمهورو صاحبانو! ما ومنل چي په (الضارب زيد) وغيره مثالونو کي تنوين د اضافت په وجه سره نه، بلکي د الف لام په وجه غورزېدلی د ی، نو اوس زه وايم لکه څرنګه چي تاسو دېته ناجائز واياست، همدا سي (الضاربک) وغيره ترکيبونو ته هم ناجائز وواياست، حال دا چي (الضاربک) خو ستاسو په نزد جائز دی، سره له دې چي له دې څخه هم چي کوم تنوېن غورزېدلی، هغه دالف لام په وجه سره دی، نه چي د اضافت په وجه، نو يا خو دواړو ته جائز وواياست، يا ناجائز، لېکن دا نسي کېدای چي يوه ته جائز او بل ته ناجائز وواياست.

### د جمهورو له لوري جواب:

د جمهورو له لوري دوه جوابونه ورکول سوي دي: له هغو څخه يو جواب محشي په حاشيه کي او دوهم په متن کي د کافيه ملاصاحب رحمه الله پخپله راوړی دی:

①: امام فراء صاحب! تا شبه کړې ده، ځکه جمهور علماء نحو خو په الضاربک کي په اضافت قائل نه دي، بلکي د اکثرو قول دادی، چي په دې کي الف لام د الذی په معنا دی او ضاربٌ صیغه داسم د ضرب په معنا ده او (ک) ضمیر مفعول به دی، ستا په دې سره دلیل نیول صحیح نه سو، ځکه چي له اضافت سره دا تړاو او تعلق نلري.

②: که چیري په دې کي اضافت ومنل هم سي، لکه چي د امام سیبویه او دهغه د متبعینو قول دی، نو بیا هم په دې سره ستا دلیل نیول نه صحیح کیږي، ځکه چي هغه پخپله ویلي دي: چي (انه مضاف حملا علی ضاربک) یعني مورږ دا قیاس کړی دی پر (ضاربک) او له ضاربک څخه تنوین د اتصاف د ضمیر په وجه غورزیدلی دی، نه چي د اضافت له وجې، نو په الضاربک کي هم تنوین هماغه راز د اتصاف ضمیر له وجې حذف سوی دی، نه چي د اضافت په وجه سره (کما فی تقریرالکافیه تهذیب الکافیه).

## پنځه نیویم (۹۵) درس د موصوف، صفت او داسم مماثل د اضافت بیان

و لایضاف موصوف الی صفة ولاصفةٌ الیْ موصوفها، مثل مسجدالجامع وجانب الغربی وصلاة الأولی وبقلة الحمقاءِ متأولٌ، و مثل جرد قطیفةٍ و اخلاق ثیابٍ متأولٌ ولا یضاف اسمٌ مماثلٌ للمضاف الیه فی العموم والخصوص (کلیثٍ واسدٍ وحبسٍ ومنعٍ) لعدم الفائدة، بخلاف کل الدراهم وعین الشیٔ، فانه یختصّ به وقولهم: سعید کرزٍ ونحوه متأوّلٌ.

**ترجمه**: او اضافت نه کیږي د موصوف خپل صفت ته او نه د صفت موصوف ته او په (مسجدالجامع وجانب الغَربی وصلاة الاولیٰ وبقلة الحمقاءِ) کي تاویل سوی دی او په (جرد قطیفةٍ و اخلاق ثیابٍ) کي هم تاویل سوی دی او نه مضاف کیږي هغه اسم کوم چي په عموم او خصوص کي له مضاف الیه سره برابر وي، لکه (لیث واسد وحبس ومنع) د فائده نه کیدو په وجه سره، په خلاف د (کل

الدراهم وعين الشئ)، ځكه چي په دغو كي مضاف تر مضاف اليه خاص دى او ددوى په قول (سعيد كرز) او ددې په ډول په تركيبونو كي تاويل سوى دى.

**تشريح**: د نن په سبقه كي څلور خبرې دي:

①: د موصوف او صفت تر مينځ له اضافت سره تړلې يوه قاعده، ②: پر مذكوره قاعده سوالونه او جوابونه يې، ③: داسم مماثل له اضافت سره تړلې يوه قاعده، ④: پر مذكوره قاعده د سوال جواب.

**لومړۍ خبره**: د موصوف او صفت تر مينځ له اضافت سره متعلق يوه قاعده:

ولايُضاف موصوف الى صفة ولا صفة الى موصوفها: مصنف رحمه الله په دې عبارت كي د موصوف او صفت تر مينځ له اضافت سره تړلې يوه قاعده بيانوي او وايې، چي نه خو د موصوف د صفت خواته او نه هم صفت د موصوف خواته اضافت كېداى سي د كافيه شارحينو په دوى كي د هريوه دوې وجې بيان كړي دي:

①: د موصوف د صفت خواته ځكه اضافت نسي كېداى، چي مركب توصيفي او مركب اضافي يو د ها بل ضد او سره مغائر وي، ځكه چي صفت له موصوف سره عين وي او مضاف اليه له مضاف نه غير وي، نو كه چېري د موصوف اضافت د صفت وطرفته وسي، نو عينيت په غيريت بدلېږي، كوم چي جائز نه دى.

②: دوهمه وجه دا چي د موصوف او صفت په اعراب كي مطابقت وي، لېكن كه چېري موصوف د صفت وطرفته مضاف سي، نو هغه مطابقت له مينځه ځي، ځكه مضاف اليه خو په هر حال كي مجرور وي، لكه چي له (رجلٌ عالمٌ) څخه (رجلُ عالمٍ) جوړېږي.

دا راز د صفت اضافت هم د موصوف وطرفته نسي كېداى، د هغه هم دوې وجې دي:

①: لومړۍ وجه قاعده ده چي مضاف تل مقدم او مضاف اليه وروسته وي، دا راز موصوف تل مخكي او صفت وروسته وي، نو كه چېري صفت مخكي سي، اضافت يې وسي، نو د صفت پر موصوف مخكي كېدل لازمېږي، لكه له (رجلٌ عالمٌ) څخه (عالمُ رجلٍ) او كه چېري د صفت له مخكي كېدو پرته اضافت وسي،

نو د مضاف اليه پر مضاف مخکي کېدل لازمېږي، لکه له (رحلٌ عالمٌ) څخه (رحلِ عالمٌ).

②: دوهمه هغه خرابي لازمېږي، کومه چي پورته ذکر سوه، چي د موصوف اوصفت د اعراب مطابقت نه پاتېږي.

**دوهمه خبره:** پر یاده سوې قاعده د دوو سوالونو جوابونه:

پر یاده سوې قاعد سوال کېږي، چي جنابه! تا خو وویل چي د موصوف د صفت خواته اضافت نسي کېدای، حال دا چي عربو ویلي دي: (مسجدالجامع) په دې کي (الجامع) د (مسجد) صفت دی ، له دې سره سره د موصوف اضافت دصفت خواته سوی دی او دا راز په (جانب الغربی او صلاة الاولی او بقلة الحمقاء) کي هم سوی دی؟

د کافیه ملاصاحب جواب ورکړی، چي (ومثل مسجد الجامع وجانب الغربی وصلاة الاولی وبقلة الحمقاء متأولٌ) یعني دا ټول مثالونه او ددوی هریوه په څېر مثال په کوم کي چي په ظاهره اضافت د موصوف وصفت معلومېږي، په دې ټولو کي تاویل سوی دی هغه په دې ډول چي په دې ټولو مثالونو کي موصوف محذوف دی او اصل عبارت یې داسي دي: (مسجدالوقت الجامع، جانب المکان الغرب، صلاة الساعة الاولی او بقلة الحبة الحمقاء)، دلته د موصوف د حذف کېدو دلیل دادی چي په لومړي مثال کي د انسانانو را یوځای کوونکی شی د لمانځه وخت وي، نه چي مسجد ، نو دلته (جامع) د وخت صفت دی، نه چي د مسجد، باقي هم دا ډول دي.

دوهم سوال دادی چي تا وویل چي د صفت اضافت د موصوف وطرفته نسي کېدای، حال دا چي عربو ویلي دي: جرد قطیفة واخلاق ثیاب په دې کي د صفت اضافت د موصوف وطرفته سوی دی؟

د کافیه ملاصاحب جواب ورکړی، چي (ومثل جرد قطیفة واخلاق ثیاب) یعني دا او ددې په څېر هر مثال په کوم کي چي په ظاهره د صفت اضافت د موصوف

وطرفته معلومېږي، د دې تولو چې کله پر عدم جواز دلیل وي، نو په دوی کې تأویل واجب دی، هغه دا راز چې دا په اصل کې (قطیفة جردٌ او ثیاب اخلاق) وو، دا ترکیب توصیفي دی، کله چې موصوف ځیني حذف کړې نو صرف (جردٌ) پاتېږي، په دې کې ابهام و، چې له دې ځخه مراد څه دي، نو ددغه ابهام د لیرې کولو لپاره یې (قطیفة) ذکر کړ، چې ابهام پاته نسي، نو دلته چې د (جرد) اضافت د (قطیفة) وطرفته سوی دی، دا په دې اعتبار نه دی، چې د صفت اضافتٌ د موصوف وطرفته وي، بلکي په دې اعتبار سره چې د ذات مبهمه اضافت د ذات معینه وطرفته د تخصیص د حاصلېدو لپاره سوی دی.

**درېیمه خبره:** د اسم مماثل له اضافت سره تړلې یوه قاعده:

و لایضاف اسم مماثل للمضاف الیه فی العموم والخصوص: په دې عبارت کې مصنف رحمة الله علیه د هغو دوو اسمونو په هکله یوه قاعده بیانوي، کوم چې په عموم او خصوص کې یو له بل سره برابر وي، په عموم او خصوص کې د برابرېدو مطلب دادی چې که چېري یو اسم پر یوه شی صادق کېدی، نو دوهم به هم پر صادقېږي، او همدا اسم که پر کوم شی نه صادق کېدی، نو دوهم به هم نه پر صادقېږي.

**فائده:** مماثلت او برابري به یا د اعیانو له قبیلې ځخه وي، لکه په لیث او اسد کې چې ده او کله کله د معنا په اعتبار سره وي، لکه په منع او حبس کې چې ده او کله کله د مصداق په اعتبار سره وي، لکه په انسان او ناطق کې چې ده.

بخلاف کل الدراهم وعن الشئ: یعني د عام اضافت د خاص وطرفته جائز دی، ځکه چې په دې مضاف کې تخصیص پیدا کېږي، لکه په (کل الدراهم) کې (کل) عام دی، ځکه چې له دې ځخه مراد دراهم هم کېدای سي او دنانیر وغیره هم، خو کله چې یې اضافت د دراهم وطرفته وسو، نو صرف په دراهم پوري خاص سو.

دا راز په (عین الشئ) کې (عین) تر اضافت مخکي عام و، یعني موجود او معدوم دواړو ته شامل و، لیکن کله چې یې اضافت د (الشئ) وطرفته وسو، نو دا صرف له موجود سره خاص سو.

اوس قاعده دا بیانوي، چې د داسې دوو اسمونو اضافت د یوه د بل وطرفته جائز نه دی، مصنف رحمه الله یې وجه دا بیان کړې، چې (لعدم الفائدة) یعني په داسې اضافت سره زموږ مطلوبه فائده نه حاصلېږي، ځکه نو دا ناجائز دی، ځکه اضافت معنوي دوې فائدې لري (تعریف او تخصیص) او په دغو دوو کې هېڅ یوه دلته نه حاصلېږي، بلکې تحصیل د حاصل راځي، مثلاً په (رأیت لیثَ اسدٍ) ویلو هماغه فائده حاصلېږي، کومه چې بېله ذکر کولو د اسد یعني په (رأیت لیثًا) ویلو حاصلېږي، نو د اسد ذکر کول او د لیث اضافت ورته کول هسې خوشې او لغوه کېږي.

**څلورمه خبره:** د یوه سوال جواب:

پر مذکوره قاعده یو سوال واقع کېدی، چې جنابه! تا قاعده وړاندې کړه، چې د دوو مماثلو اسمونو د یوه اضافت د بل وَطرفته نسې کېدای، نو (سعید کرز) کوم چې دوه مماثل او مترادف اسمونه دي، ځکه سعید او کرز دواړه د یوه شخص لپاره ویل سوي دي، سعید یې خپل نوم وو او د ډېر چاغوالي او غټ بدن درلودلو له وجې ورته په کرز لقب ویل کېده، ځکه ددې معنا ده (خرجیّ) یعني هغه تبلۍ او بورۍ په کومه کې چې غله وغیره واچول سي او پر اوښ کښېښودل سي، نو سعید او کرزٌ دواړه د همدغه یوه شخص نوم دي، نو دا مترادف او مماثل سوا او بیا هم په دوی کې د یوه د بل وطرفته اضافت سوی دی؟ د کافیه ملاصاحب یې جواب کړی، چې (وقولهم سعید کرز ونحوه متأول) یعني کله چې د دو مماثلینو د یوه وبل ته د اضافت پر عدم جواز دلیل قائم و بیا هم په ظاهره مضاف معلومېدل، نو د هغه تأویل واجب دی، لکه په دې کې داسې تاویل کېږي، چې له مضاف (سعیدٌ) څخه مراد ذات مسمی او له مضاف الیه (کرزٌ) څخه مراد همدا لفظ (کرزٌ) دی، نو د (سعیدُ کرزٍ) معنا سوه هغه ذات کوم چې د کرز په لفظ ملقب دی، نو د دواړو تر مینځ مماثلت پاته نسو، بلکې تباین او مخالفت دی، ځکه د دواړو مصداق یو نه دی او د متباٸنین او مخالفینو د یوه و بل ته اضافت کېدای سي ان شاء الله تعالی بالصواب.

## شپږ نېویم (۹۶) درس

## د مضاف له اخیري حرف سره تړلې څلور اهمې مسئلې

و اذا اضیف الاسم الصحیح او الملحق به الیٰ یاء المتکلم، کُسر آخره والیاء مفتوحة او ساکنةٌ فان کان آخره الفًا تثبت وهُذَیل تقلبها لغیرالتثنیة یاءً، وان کان یاءً ادغمت ، ان کان واوًا قلبت یاءً وادغمت وفتحت الیاء للساکین.

**ترجمه:** او کله چي اضافت وسي د اسم صحیح یا جاری مجرای صحیح د یاء متکلم وطرفته، نو اخېر ته یې کسره ورکول کېږي، په داسي حال کي چي یا مفتوح وي، یا ساکن، بیا که چېري ددې په اخېر کي الف وي، نو هغه ثابت پاتېږي او قبیله هذیل یې په یاء بدلوي، چي کله هغه د تثنیه نه وي او که چېري په اخیر کي یاء وي، نو هغه مدغم کېږي او که چېري واو وي، نو په یاء بدلېږي، بیا یاء په یاء کي مدغم کېږي او یا ته فتح ورکول کېږي د ساکنین د جمع کېدو له وجې څخه.

**تشریح:** ورورکیه! د نن په سبقه کي د مضاف له اخیري حرف سره تړلې څلور مهمې مسئلې ذکر کېږي:

**لومړی مسئله:** د یاء متکلم مفتوح او ساکن ویل:

و اذا اضیف الاسم الصحیح او الملحق به الیٰ یاء المتکلم، کُسر آخره. والیاء مفتوحة او ساکنةٌ : مصنف رحمة الله علیه په دې عبارت کي لومړی دا مسئله بیانېږي، چي کله د اسم صحیح یا جاري مجرائ صحیح اضافت د یاء متکلم وطرفته وسي، نو د دغه اسم اخیر د یاء په مناسبت مکسور کېږي او پخپله یاء ساکن او مفتوح دواړه رنګه ویل جائز کېږي، لکه د اسم صحیح مثال (غلامیْ او غلامِیَ او کتابیْ او کتابیَ) او د جاري مجرائ صحیح مثال (دلویْ او دلوِیَ او ظبییْ او ظبییَ).

بیا په دې کي اختلاف دی، چي آیا فتح اصل ده، یا سکون، نوله صحیح ترین قول سره سم فتح اصل ده، ځکه چي یاء متکلم بېل او یو حرفیزه کلمه ده او په یوه حرفیزه کلمه کي اصل دادي، چي هغه متحرکه وي، د دې لپاره چي ابتداء په ساکن لازمه نسي او تر ټولو سپک حرکت د فتح حرکت دی، له همدې وجې د یاء متکلم مفتوح کېدل اصل وبلل سوه ، د همدغه اصل کېدو په وجه مصنف رحمة الله علیه

(والیاء مفتوحة) وویل دا یې مقدم کړل، پر دې سربېره دده ساکن ویل هم جائز دي، ځکه خفت په دې کې هم سته، له همدې وجې مصنف رحمه الله تر دې وروسته (او ساكنة) هم وویل.

**دوهمه مسئله**: د الف مقصوره ثابت پاتېدل، یا په یاء بدلول:

فان كان آخره الفا تثبت: دوهمه مسئله داده، چې که چېري د اسم اخیري حرف الف مقصوره وي، بیا یې اضافت د یاء متکلم وطرفته سوی وي، نو اکثره عرب قبائل دغه الف پر خپل حال پرېږدي، لکه له (عصا) څخه (عصای) او له (رحی) څخه (رحای) او له (رجی) څخه (رجای).

مصنف رحمه الله ویلي چې (وهذيل تقلبها لغيرالتثنية) یعني د هذیل قبیله داسې الف په یاء بدلوي، بیا داسې یاء په یاء متکلم کې مدغم کوي، په دې شرط چې دغه الف د تثنیة نه وي، لکه له (عصا) څخه (عصيّ) او له (رحی) څخه (رَحِيّ).

د هذیل والا دغه الف ځکه په یاء بدلوي، چې دده په اخېر کې یاء متکلم وي او یاء د خپل ماقبل کسره غواړي او الف حرکت نسي قبلولای، له همدې وجې نو الف په یاء بدلېږي، ځکه چې یاء حرکت قبلولای سي.

د (لغیرالتثنیة) قید یې ځکه لګولی، چې که چېري دا هم په یاء بدل کړل سي، نو د حالت رفعي له حالت نصبي او جري سره التباس لازمېږي او له مفرد سره یې هم التباس لازمېږي، لکه له (غلامان) څخه (غلامایَ).

**درېیمه مسئله**: د یاء په یاء متکلم کې مدغمول:

وان كان ياء ادغمت: درېیمه مسئله داده چې د داسې اسم مضاف په اخیر کې چې یاء وي، نو داسې یاء په یاء متکلم کې مدغمېږي، ځکه دوه حرف له یوه جنسه سره جمع سوي دي او دوهمې یاء ته فتح ورکول کېږي، ددې لپاره چې اجتماع د ساکنینو لازمه نسي، لکه له (قاضی) څخه (قاضِيّ) او له (مسلمین) څخه (مسلمِيّ).

**څلورمه مسئله**: د واو په یاء اوښتل:

وان كان واوا قلبت ياء: که چېري. ددغه اسم په اخیر کې (واو) و، نو په یاء بدلېږي، یاء په یاء کې مدغمېږي، بیا مصنف رحمه الله وایې: چې (وفتحت الياء

للساکنین) یعني یاء متکلم ته فتح ورکول کېږي، د دې لپاره چي التقاء د ساکنینو لازمه نسي، لکه له (مسلمون) څخه (مسلمیّ).

که چېري یو طالب العلم ته سوال پیداسي، چي په پورتنۍ مسئله کي د محض التباس په وجه الف د تثنیه پر خپل حال پاتېدی، نو (مسلمون) یعني د جمع په صیغه کي هم مناسب همدا وه، چي (واو) یاء نه وای سوی، ځکه دلته هم ددې له حالت نصبي او جري سره التباس لازمېږي؟

د دې جواب دادی، چي هلته الف پر خپل حال ځکه پاتېدی، چي لغت مشهوره او فصیحه والا پخپله ویلي دي چي تر یاء متکلم مخکي که چېري الف راسي، نو مورږ ته د هغه په ویلو کي هېڅ وخت مشکل نه پېښېږي، خو هذیل والا کوم چي دا په یاء بدل کړی و، هغه هم صرف د جواز په درجه کي دی، که نه لومړی صورت ددوی په نزد هم پر خپل حال پاتېږي، پر خلاف فیما نحن فیه یعني له (مسلمون) څخه په (مسلمیّ) کي چي کوم حذف سوی دی، نو دا په اتفاق د علماء لغت د عرب وجوبًا داسي سوي دي، ځکه چي په یوه کلمه کي په یوه و ار واو او یاء جمع کېدل لازمېدل او خوندوره خبره خو داده، چي لومړی چي ساکنه هم وي، نو په داسي صورت کي که چېري د التباس خطره هم نه وي، بیا هم واو یاء کېږي، یاء په یاء کي مدغمېږي، لکه له (مسلمون) څخه (مسلمیّ).

**د مذکوره څلور سره مسئلو لنډیز:**

د مذکوره څلورو مسئلو خلاصه داسوه چي هر هغه اسم چي د یاء متکلم وطرفته مضاف سوی وي، نو د هغه په اخیر کي به یا حرف صحیح وي، یا حرف علت، که چېري حرف صحیح و، نو هغه ته کسره ورکول کېږي، پخپله یاء متکلم ساکنه یا په فتح سره ویل جائز دي او که یې چیري په اخیر کي الف وي، نو هغه پر خپل حال پاتېږي، په خلاف د هذیل د قبېلې چي هغوی دا الف (چي د تثنیه نه وي) په یاء بدلوي او که چېري یاء وي، نو په یاء متکلم کي یې مدغموي او که چېري واو و، نو په یاء یې اړوي، بیا یاء په یاء کي مدغموي.

**اووه نېویم (۹۷) درس**

## د اسماء سته مکبره له اضافت سره تړلي شپږ اهمي مسئلې

وأما الأسماء الستة فأخي وأبي واجاز المبردُ اخِيَّ وابِيَّ، و تقول: حمي وهني ويقال: فِيَّ في الاكثر وفمي، واذا قُطعت قيل: اخٌ وابٌ وحمٌ وهنٌ وفمٌ وفتح الفاء افصح منهما وجاءَ حمٌ مثل يدٍ وخبءٍ ودلوٍ وعصًا مطلقًا وجاء هنٌ مثل يدٍ مطلقًا و ذو لايُضاف الى مضمرٍ و لايُقطع.

**ترجمه:** او پاتې سوه اسماء سته (کله چي د یاء متکلم وطرفته مضاف وي، نو داسي ویل کېږي: اخی او ابی) او امام مبرد (اخِیّ او ابیّ) ویل جائز بللي دي او ښځېنه وایې: (حمی او هنی) او ویل کېږي (فیّ) په اکثره استعمال کي او کله کله (فمی) او کله چي یې اضافت قطع سي، نو ویل کېږي (اخٌ، ابٌ ، حمٌ، هنٌ او فمٌ) او د فاء فتح تر ضمه او کسره زیاته فصیح ده او حمٌ راځي د یدٌ، خبء او دلوٌ او عصًا په ډول هم مطلقًا او هن راځي د یدٌ په ډول مطلقًا او د ذو اضافت د ضمیر وطرفته نسي کېدای او نه له ده څخه اضافت منقطع کېدای سي.

**تشریح:** د نن په سبقه کي له اسماء سته مکبره سره تړلي شپږ اهمي مسئلې او په اخیر کي یو سوال او د هغه جواب ذکر کېږي:

**لومړۍ مسئله:** له ابٌ او اخٌ سره متعلق:

وأن الأسماء الستة فاخي اوأبي: چي له اسماء سته مکبره څخه کله د (ابٌ او اخٌ) اضافت د یاء متکلم وطرفته وسي، نو د جمهورو نحاتو په نزد چي د دوی په اصل کي کوم (واو) دی د هغه له اعتبار کولو پرته (اخی او ابی) ویل کېږي.

وأجاز المبرد اخيّ و ابيّ: امام مبرد وایې: چي د دوی لومړي اصل ته اعتبار ورکول کېږي، کوم چي (اخو او ابو) دی، بیا دغه واو په یاء بدلېږي، یاء په یاء کي مدغمېږي، نو (اخیّ او ابیّ) ویل کېږي، لېکن تر ټولو صحیح قول د جمهورو دی، ځکه د دوی دلېل وزني دی، چي کثرت استعمال د تخفیف تقاضا کوي او تخفیف د حذف سوي حرف په بېرته راتلو سره نه راځي، ځکه چي هغه خو نسیًا منسیًا حذف سوی دی.

**دوهمه مسئله**: له حمٌ او هنٌ سره متعلق:

دوهمه مسئله کومه چې له (حمٌ او هن) سره تړلې ده، دا که څه هم په اصل کې (حمو او هنو) و، لېکن کله چې یاء متکلم ته مضاف سي، نو بالاتفاق بېله دې چې حذف سوی حرف (واو) را وګرځي (حمی او هنی) ویل کېږي.

**یادونه**: امام مبرد په د غو دوو صیغو کې هم له جمهورو سره اختلاف لري، لېکن په مخکنیو دوو صیغو کې دده اختلاف ډېر مشهور و، ځکه نو مصنف رحمة الله علیه ذکر کړ او دلته د عدم شهرت پر بناء دا اختلاف پرېښودل سوی دی.

**درېیمه مسئله**: له فمٌ سره متعلق:

**درېیمه مسئله**: له (فمٌ) سره تړلې ده، دا په اصل کې (فوهٌ) وو، (ها) نسیًا منسیًا حذف سوه، نو (فو) پاته سو، بیا (واو) هم حذف کړل سو، په عوض کې یې (میم) راغی، نو (فمٌ) سو، اوس چې کله یاء متکلم ته مضاف سو، نو جمهور علماء نحو وایې چې له (فوهٌ) څخه (ها) نسیًا منسیًا حذف سوې ده، بېرته نه راګرزي، لېکن د واو په بدل کې چونکه میم راغلی و، ځکه دلته واو بېرته را ګرزي، په یاء بدلېږي، بیا یاء په یاء متکلم کې مدغمېږي، نو (فیّ) ځیني جوړېږي، همدا مطلب د مصنف رحمة الله علیه ددغه قول (ویقال فیّ فی الاکثر) دی.

**و فمی**: په کتاب کې تر دې لاندې ناکت صاحب لیکلي دي (فی بعضها) یعني د بعض علماء نحو مذهب دادی، چې د (فمٌ) میم پر خپل حال پاتېږي او د متکلم یاء ته یې اضافت کېږي، نو ددوی په نزد له (فمٌ) څخه (فمی) ویل کېږي، لېکن تر ټولو صحیح قول د جمهور علماء نحو دی.

**څلورمه مسئله**: له اسماء سته مقطوع عن الاضافة سره متعلق:

واذا قطعت قیل: اخٌ وابٌ وحمٌ وهنٌ وفمٌ: په دې عبارت کې څلورمه مسئله بیانېږي، چې کله له اسماء سته مکبره څخه د پنځو اسمونو اضافت ختم سي، نو د مفرد منصرف صحیح، جاری مجرائ صحیح او جمع مکسر په ډول پر دوی درې

سره اعرابه جاري کېږي، لکه د حالت رفعي مثال (جاءنی اخٌ وابٌ وحمٌ وهذا هنٌ وهذا فمٌ) وقس علیه حالة نصبها وجرها.

**پنځمه مسئله:** د فمْ، حمْ او هن له قرأتونو سره متعلق:

وفتح الفاء افصح منهما: له دې ځایه واخله تر (مثل ید مطلقًا) پورې له اسماء ستة ځخه د درېو یعني (فم، حم اوهن) له لغات او قراءتونو سره تړلې مسئله بیانېږي، لکه چې وېې ویل (وفتح الفاء افصح منهما) د دې عبارت تړاو له کومې کلمې سره دی؟ مصنف رَحِمَهُ اللهُ عَلَیْهِ که څه هم په دې کوم صراحت نه دی کړی، لېکن د کافیه د شارحینو پر دې اتفاق دی، چې د دې تعلق له (فمٌ) سره دی، نو وایې: چې د (فمٌ) په لفظ کې درې لغات دي:

①: فتح الفاء لکه (فَمٌ)، ②: بکسر الفاء لکه (فِمٌ)، ③: بضم الفاء، لکه: (فُمٌ).

په دې کې درې قسمه لغات ولې راغله؟ د دې جواب دادی، چې دا د عین کلمه په مناسبت سره راغله، مثلا چې د دې (میم) حذف کړل سي، (واو) بېرته راسي، نو په حالت رفعي کې یې مونږ (هذا فوک) وایو، نو د (واو) په وجه پر فاء کلمه ضمه راغله او په حالت نصبي کې یې مونږ (رأیت فاک یا نظّفت فاک) وایو، نو د الف په وجه پر فاء کلمه فتحه راغله، او په حالت جري کې مونږ (وضعت اللقمة فی فیک) وایو، نو د یاء په وجه پر فاء کلمه کسره راغله، نو دا راز دغه درې سره لغتونه جائز دي، لېکن مصنف رَحِمَهُ اللهُ عَلَیْهِ وویل: چې (وفتح الفاء افصح منهما) چې فاء کلمه په فتحه سره ویل تر ضمه او کسره زیات فصیح دی، د دې یې دوې وجې بیان کړې دي:

①: ځکه چې دا په اصل کې هم مفتوح الفاء وه، ځکه دا په اصل کې (فَوَهٌ) و، نو د اصل په اعتبار کولو سره فتحه فصیح وبلل سوه، ②: ځکه چې فتحه اخف الحرکات (تر ټولو حرکتونو سپکه) ده.

د منهما ضمیر مرجع که څه هم په عبارت کي ذکر سوی نه دہ، لیکن کله چي موږ فتحه ته ترجیح ورکړه، نو دا خبره پخپله معلومه سوه چي د (منهما) ضمیر مرجع ضمه او کسره دي، ځکه فتحه ددوی دوو په مقابله کي راځي.

و جاء حمٌ مثل یدٍ و خبءٍ ودلوٍ وعصًا مطلقًا: د حمٌ په هکله وایې، چي په دې کي څلور قسمه لغات دي:

①: په مطلق ډول د یدٌ په څېر ویل کېږي، یعني که مضاف وي، که نه وي په دواړو حالتونو کي (واو) محذوفه نه راګرزي، لکه (جاءنی حمٌ وحمُک، ورأیتُ حمًا وحمَک ومررت بحمٍ وحمِک).

②: د خبء په څېر یعني که مضاف وي، که نه وي مضاف په دواړو حالتونو کي دا مهموزاللام ویل کېږي، لکه (جاءنی حموٌ وحمئک ورأیت حمًا وحمئک ومررت بحمئ وحمئِک).

③: د دلوٌ په څېر یعني که مضاف وي که نه وي، محذوف حرف بېرته راګرزي، اعراب پر جاري کېږي، لکه (هذا حموٌ وحموُکِ ورأیت حموًا وحماکِ و مررت بحموٍ وحمِیک).

④: د عصا په ډول یعني که دغه حم مضاف وي، که نه وي په دواړو صورتونو کي دېته تقدیري اعراب ورکول کېږي، لکه (هذا حمًا وحماکِ ورأیت حمًا وحماکِ ومررت بحمًا وحماکِ).

په اخیر کي یې (مطلقًا) وویل، ددې مطلب دادی، چي مذکوره څلور سره صورتونه که مضاف وي، که نه وي، په هرو دواړو حالتونو کي دوی په مذکوره طریقو ویل کېږي، لکه چي موږ هرصورت تشریح کړ او په مثالونو مو واضح کړ.

و جاء هنٌ مثل یدٍ: د (هنٌ) په هکله وایې، چي دا د (یدٌ) په څېر دی، یعني که مضاف وي، که نه وي، محذوف حرف یې بېرته نه راګرزي، لکه (هذا هنٌ وهنُک وغَسلتُ هنًا وغسلتَ هنک، واجتنبت عن هنٍ وهنِک)، د دې په اخېر کي یې د (مطلقًا) قید لګولی دی، نو ددې مطلب هم هماغه دی، کوم چي همدا اوس وښودل سو.

شپږمه مسئله: د (ذُو) له کلمه سره متعلق:

وذو لايُضاف الیٰ مضمر ولايُقطع: د کافیه ملاصاحب رحمة الله عليه تر دې مخکې په اسماء سته مکبره کې له پنځو اسماؤ سره تړلې پنځه مسئلې بیان کړې، په اخیر کې (ذو) پاته سوه، اوس دغه اخیري مسئله بیانوي، مسئله داده، چې د (ذو) اضافت نه خو د کوم ضمیر وطرفته کېږي او نه هم کله بېله اضافته استعمالېږي، مطلب دادی، چې دا تل یوازې د اسم جنس وطرفته مضاف کېږي.

مصنف رحمة الله عليه په دې قاعده کې ددوو خبرو نفې کوي:

①: د ذو د اسم ضمیر وطرفته د اضافت نفې، ②: ذو بېله اضافته کله هم نه مستعملېږي، د دواړو وجه داده، چې د (ذو) وضع صرف د دې لپاره راغلې ده، چې دده په ذریعه اسم جنس د نکره یا معرفه صفت جوړېږي، لکه چې په (جاءنی رجلٌ ذومال) کې یې د نکره لپاره اسم جنس صفت جوړ کړی دی او په (جاءنی زید ذوالمال) کې یې د معرفه لپاره اسم جنس صفت جوړ کړی دی.

اوکه چېرې ددې اضافت د ضمیر وطرفته وسي، یا یې له سره اضافت ونسي، نو له وضع څخه مخالفت لازمېږي، ځکه یې نو وویل چې (وذو لايُضاف الیٰ مضمر ولايُقطع).

یو سوال او دهغه جواب:

**سوال:** دادی چې تا وویل چې د (ذو) نه اضافت د اسم ضمیر وطرفته کېږي او نه بېله اضافته استعمالېږي، بلکې اضافت یې صرف د اسم جنس وطرفته کېږي، حال دا چې په یوه مبارک درود کې راغلي دي: (اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ و ذویه) یعني ای الله جل جلاله! رحمتونه او سلامتیانې نازل کړه پر رسول الله ﷺ او دهغه پر صحابه کرامو رضي الله عنهم، نو دلته (ذو) د اسم ضمیر وطرفته مضاف سوې ده، دا راز د عربي یو شعر هم دی:

اهنأ المعروف مالم يتبذل فيه الوجوه

انما يعرف ذا الفضل مـــن الناس ذووه

**ترجمه:** تر ټولو خوندور احسان هغه دی، په کوم کې چې احسان کوونکی د خلګو مخې ته نه راځي، یعني د دوی بې عزتي نه کوي او د فضل څښتن یوازې د فضل څښتنان خلک پېژني.

نو په دې کې هم د (ذو) اضافت د ضمیر وطرفته سوی دی.

د دې لنډ جواب تاسو په هدایة النحو کې ویلی دی، چې دا او ددې په څېر مثالونه چې څېرې هم وي، هغه ټول شاذ دي.

والله اعلم بالصواب وعلمه اتم واکمل

قد تمت ترجمة المجرورات بفضل الله تعالى وكرمه

## توابع

### اته نېویم (۹۸) درس

### دلومړي تابع (صفت) بیان

**التوابع:** كل ثانٍ باعراب سابقه من جهةٍ واحدةٍ، النعت: تابعٌ يدل على معنىً فى متبوعه مطلقًا، وفائدته تخصيصٌ او توضيحٌ وقد يكون لمجرد الثناء اوالذم او التوكيد، نحو: (نفخةٌ واحدةٌ).

**ترجمه:** توابع هر هغه دوهم اسم دی کوم چې له مخکني اسم سره په اعراب کې موافق وي، له یوه جهت څخه، صفت هغه تابع دی، چې مطلقًا پر داسې معنا دلالت کوي، کومه چې دده په متبوع کې وي او ددې فائده یا تخصیص وي، یا توضیح او کله کله صفت یوازې د تعریف (ستاینې) یا مذمت، یا تاکید لپاره هم راځي، لکه (نفخةٌ واحدةٌ).

**تشریح:** د نن په سبقه کې پنځه خبرې دي:

①: د توابع تعریف، ②: په تعریف کې دقیدونو فائدې، ③: د صفت لغوي او اصطلاحي تعریف، ④: د صفت په تعریف کې د قیدونو فائدې، ⑤: د صفت فائدې.

**تمهید:** د کافیه ملاصاحب رحمه الله علیه اصلي معربات بیان کړل، اوس معربات تبعیه بیانوي، مطلب دا چې اسماء معربه یعني د مرفوعات، منصوبات او مجرورات اعراب پر دوه قسمه دی، اعراب بالاصالة او اعراب بالتبعیة او اعراب بالتبعیة دا معنا چې پخپله پر اسماء معربه کوم داسې عامل داخل نه وي، بلکې تر دوی

مخکي چي کوم اسم دی پر هغه داخل وي، د هغه اعراب دغه اسماء تابع راځي، يعني که چېري لوم‍ړی اسم مرفوع وي، نو دا هم مرفوع کې‍ږي او که چېري هغه منصوب وي، دا هم منصوب کې‍ږي او که چېري مجرور وي نو دا دوهم هم مجرور کې‍ږي، په دې ټولو کي لوم‍ړي ته متبوع او دوهم ته تابع ويل کې‍ږي.

## د توابع تعريف

**لوم‍ړۍ خبره:** د توابع تعريف:

کل ثان با عراب سابقه من جهة واحدة: په دې عبارت کي د کافيه ملاصاحب رحمة الله عليه د مطلق تابع تعريف کوي، لېکن تر دې مخکي د توابع له لفظ سره متعلق په دې پوه سئ، چي دا د (تابعٌ) جمع ده، ځکه چي تابع کېدل د اسماؤ صفت دی او د اسماء مفرد (اسمٌ) يعني د مذکر په صيغه سره راځي، نو د توابع مفرد هم (تابعٌ) د مذکر صيغه راځي، د دې لپاره چي د موصوف او صفت تر مينځ مطابقت راسي.

که چېري يو طالب العلم سوال وکړي، چي توابع پر وزن د فواعل دی او فواعل وزن خو د فاعلة جمع راځي، لکه د طالبة جمع طوالبٌ او د صاحبة جمع صواحبُ، نو مناسب دا وه چي دا د تابع پر ځای د تابعةٌ جمع وای؟

**جواب:** ددې جواب دادی: څرنګه چي وښودل سوه، چي دا د اسماؤ صفت دی او اسماء مذکر لايعقل يعني د اسم جمع دی او قاعده ده چي د لايعقل د صفت جمع د فواعل پر وزن راځي، لکه صواهل، طوالع او شواهق وغيره.

او دوهم جواب يې دادی، چي تابع که څه هم د خپلې اصلي وضع په اعتبار وصف دی، لېکن د نحويينو په اصطلاح کي دا منقول سوی، اسم ذات سوی دی او قاعده ده چي د فاعل پر وزن چي کوم اسم ذات وي، د هغه جمع د فواعل پر وزن راځي، لکه د کاهلٌ جمع کواهل راځي، له همدې وجې د تابعٌ جمع هم توابع راغلې ده.

اوس تعريف ته غوږ سئ! چي تابع په يو جمله کي موجود هر هغه اسم دی کوم چي له لوم‍ړي اسم سره په يوه جهت په اعراب کي موافق وي، مثلاً که چېري لوم‍ړی اسم د فاعليت له وجې مرفوع وي، نو دی به هم د فاعليت له وجې مرفوع وي، لکه (جاءنی زيدٌ العاقلُ) دلته (زيد) د فاعل کېدو له وجې مرفوع دی او (العاقل) کوم چي دوهم اسم دی، دا هم د فاعل کېدو په وجه مرفوع دی او که

چېرې لومړی اسم د مفعولیت یا حرف جر په وجه منصوب، یا مجرور وي، نو دوهم هم د همدغه مفعولیت له وجې منصوب کېږي، لکه: زرتُ رجلًا عالمًا او که چېرې لومړی مجرور په حرف جر یا مجرور بالمضاف وي، نو دوهم هم د حرف جر یا د همدې مضاف په وجه مجرور کېږي، لکه: التقیتُ برجلٍ عالمٍ او طالعت کتابَ رجلٍ عالمٍ.

**دوهمه خبره:** په تعریف کې د قیدونو فائدې:

التوابع کل ثانٍ باعراب سابقه من جهةٍ واحدةٍ: په دې عبارت کې التوابع معرَّف دی او کل ثانٍ تر اخیره پورې عبارت یې تعریف دی، په تعریف کې (کل ثان) جنس دی، کوم چې هر دوهم اسم ته شامل دی (باعراب سابقه) دا لومړی فصل دی، په دې سره د (انّ) او د هغه د اخواتو او د (کان) او د هغه د اخواتو خبرونه، دا راز د (ماولا) مشابه بلیس خبر خارج سول، ځکه د هغو اعراب د لومړي اسم اعراب نه دی.

**من جهةٍ واحدةٍ:** دا دوهم فصل دی، په دې سره د مبتداء خبر او د باب علمت مفعول ثاني او د باب اعلمت درېیم مفعول خارج سول، ځکه دا ټول که څه هم اسم ثاني دي، او د سابق له اعراب سره یې اعراب برابر دی، لېکن جهت یې یو نه دی، ځکه چې مبتداء د مسندالیه کېدو په وجه مرفوع ده او ددې خبر د مسند کېدو په وجه مرفوع وي، دا راز د باب علمت او اعلمت مفعول اول د محکوم علیه کېدو په وجه منصوب وي او ثاني یې د محکوم به کېدو په وجه منصوب وي.

## د صفت لغوي او اصطلاحي تعریف

**درېیمه خبره:** د صفت لغوي او اصطلاحي تعریف:

النعت تابع یدلّ علیٰ معنی فی متبوعه مطلقا: النعت د فتح یفتح د باب مصدر دی، لغوي معنا یې ده تعریف (ستاینه) کول، تعریف کوونکي ته ناعت (د فاعل پر وزن) او د چا چې تعریف کېږي، هغه ته منعوت (د مفعول پر وزن) ویل کېږي.

او په اصطلاح کې صفت هغه تابع دی، کوم چې بېله یو مانع او بېله کوم قید څخه پر یو داسې معنا دلالت کوي کومه چې په متبوع کې وي، لکه (جاءنی رجلٌ عالمٌ) دلته عالم پر داسې معنا دلالت کوي، کومه چې په زید کې سته.

مصنف رحمه الله په تعریف کي د مطلقًا په قید سره نور ټول توابع وایستل، ځکه بعض توابع مثلاً بدل، تاکید او معطوف که څه هم پر داسي معنا دلالت کوي، کومه چي په متبوع کي موجوده ده، خو دا دلالت د تل لپاره نه وي، بلکي له بعض مادو سره خاص وي، مثلاً (اعجبنی زید علمه) په دې کي (علمه) له (زید) څخه بدل واقع دی او دا پر داسي معنا دلالت کوي، کومه چي په زید کي سته، خو دا دلالت په هر حالت کي نه دی، همدا وجه ده چي که چېري د (علمه) پر ځای (غلامه) وویل سي، نو په دې وخت کي د بدل د لالت پر متبوع نه کېږي، په خلاف د صفت چي هغه په هر حال او هره ماده کي پر داسي معنا دلالت کوي، کومه چي په متبوع کي موجوده وي.

**څلورمه خبره:** د صفت په تعریف کي د قیدونو فائدې:

النعت تابعٌ یدلّ علیٰ معنیً فی متبوعه مطلقًا: په دې عبارت کي النعت معرّف دی او له تابع څخه تر اخیره پوري عبارت یې تعریف دی، بیا په دې تعریف کي (تابعٌ) جنس دی کوم چي ټولو توابع او دکانَ وغیره خبرونو ته شامل دی (یدل علی معنی فی متبوعه) دا لومړی فصل دی په دې سره له توابع پرته نور ټول اسماء وزي، او (مطلقًا) دوهم فصل دی په دې سره له صفت پرته نور ټول توابع ووتل.

## د صفت فائدې

**پنځمه خبره:** د صفت فائدې:

وفائدته تخصیصٌ او توضیحٌ....... په دې سره د کافیه ملاصاحب د صفت پنځه فائدې بیانوي:

**لومړۍ فائده:** تخصیص بیانول:

تخصیصٌ که چېري موصوف او صفت دواړه نکره و، نو صفت تخصیص فائده کوي او تخصیص تقلیل الاشتراک فی النکرات یعني د نکره په افرادو کي کمي ته ویل کېږي، لکه (جاءنی رجلٌ عالمٌ) دلته (رجلٌ) هر فرد عالم او جاهل ته شامل و، خو کله چي عالمٌ صفت ورسره راغی، نو جاهل افراد ووتل او اشتراک کم سو.

**دوهمه فائده:** د موصوف واضح کول:

**توضیح**: یعني که چیرې موصوف او صفت دواړه معرفه وو، نو صفت د موصوف وضاحت کوي او توضیح رفع الاجمال فی المعارف یعنی له معرفه څخه د اجمال لیرې کېدو ته ویل کېږي، لکه: (جاءنی زیدالفاضل) دلته په زید کي اجمال و، چي کوم زید مراد دی، نو په الفاضل ویلو سره هغه اجمال له مینځه ولاړ.

**درېیمه فائده**: تعریف بیانول:

و قد یکون لمجردالثناء: چي کله کله صفت د یو چا یوازې د مدح او ستاینې بیانولو لپاره هم راځي او دا هغه مهال کېږي، کله چي متکلم یا مخاطب له مخکې نه لا معلوم وي، چي موصوف په فلاني صفت پوښلی دی، لکه (بسم الله الرحمن الرحیم) دلته په (الرحمن الرحیم) سره مقصود یوازې د الله ﷻ ثناء او ستاینه بیانول دي، ځکه له مخکې نه لا معلوم مې او د هر مسلمان عقیده (باور) دی، چي د الله ﷻ ذات رحمـــــن او رحیم دی.

**څلورمه فائده**: د مذمت بیانول:

اوالذم: کله چي د موصوف په هکله دا معلومه وي، چي په فلاني صفت سره موصوف دی، نو په داسي صفت سره یې متصف کول کله کله خو محض د ده دمدح او ثناء لپاره وي، لکه چي تېر سو او کله کله بیا دده د مذمت لپاره هم وي، لکه: (اعوذ بالله من الشیطن الرجیم) دلته (الرجیم) د شیطان دمذمت لپاره راوړل سوی دی.

**پنځمه فائده**: د تاکید بیانول:

**اوالتوکید**: کله کله صفت یوازې د تاکېدل لپاره کېږي، دا هغه مهال وي، کله چي موصوف پخپله هم پر دغه معنی دلالت کوي، کومه چي د صفت معنا ده، لکه (فاذا نفخ فی الصور نفخة واحدة) دلته (واحدة) د (نفخة) صفت دی او محض د تاکېد لپاره راوړل سوی دی، ځکه د (واحدةٌ) معنی هم یو ده او د (نفخة) له تاء وحدة څخه هم دیوه معنا معلومېږي، پر دې سربېره تاسو په علم الصیغه کي هم ویلي د ي، چي (وفعلة للمرة) یعني د فعلة وزن د یوه عدد بیانولو لپاره راځي او نفخة هم ددغه فعلة پر وزن ده.

والله اعلم بالصواب وعنده علم کل شئ

## نه نیویم (۹۹) درس

### کوم شیان صفت جوړیدای سي او کوم نسي

ولا فصل بين ان يكونَ مشتقًا او غيره ا ذا كان وضعُه لغرض المعنى عمومًا، نحو: تميمي وذى مالٍ او خصوصًا، مثل: مررتُ برجلٍ ایّ رجلٍ ومررتُ بهذا الرجل وبزيدٍ هذا وتوصف النكرة الجملة الخبرية ويلزم الضمير وتوصف بحال الموصوف وبحال متعلّقه ، نحو: مررت برجل حسنٍ غلامه، فالأول يتبعه فى الاعراب والتعريف والتنكير وا لافراد والتثنية والجمع والتذكير والتأنيث.

**ترجمه:** او دا هيڅ فرق نلري، چي صفت مشتق وي، يا غير مشتق، په دې شرط چي وضع يې په عامه توګه د معنی د غرض لپاره وي، لکه تميميّ او ذومال يا خاص وي، لکه: (مررت برجل ایّ رجل ومررت بزيدهذا) او که د نکره صفت په جمله خبريه کېږي، خو ضمير به لازمي وي او صفت کيږې د موصوف د حال په ذريعه سره او دحال د متعلق په ذريعه سره، لکه: (مررت برجل حسن غلامه) بيا لومړی په اعراب، معرفه او نکره کېدو ، په مفرد، تثنيه اوجمع او په تذکېر او تانيث کي د متبوع تابع کېږي.

**تشريح:** د نن په سبقه کي درې خبرې د ي:

①: د اسم مشتق اوغير مشتق په ذريعه صفت راوړل، ②: د جمله خبريه په ذريعه صفت راوړل، ③: د حال او دهغه دمتعلق په ذريعه صفت راوړل.

### داسم مشتق وغير مشتق په ذريعه صفت راوړل

**لومړۍ خبره:** داسم مشتق وغير مشتق په ذريعه صفت راوړل:

ولا فصل بين ان يكون مشتقًا.....و بزيدٍ هذا: د نحوي ځيني علماؤ ويلي د ي، چي د صفت لپاره داسم مشتق کېدل ضروري د ي او که چېري مشتق نه وي، نو پکي تأويل کېږي، د مشتق په معنا ا خستل کېږي، تر دې وروسته صفت جوړېږي، نو مصنف رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ د مذکوره عبارت په ذريعه دداسي علماؤ قول رد کړی دی، چي د صفت لپاره مشتق او غير مشتق کېدل هيڅ فرق نلري، بلکي لکه څرنګه چي اسم مشتق صفت کېدای سي، همدا راز اسم غير مشتق هم جوړيدای

سي، په دې شرط چې وضع يې دداسي معنا لپاره وي، کومه چې په موصوف کي موجوده وي.

بیا مخکي مصنف رحمة الله علیه (عمومًا) لیکلي دی، یعني کله کله خو په دې صفت کي عموم وي، یعني د متبوع پر معنی دده دلالت د همېشه لپاره وي، لکه (تمیمیٌ او ذومال) د تمیمي دلالت همېشه پر هغه سړي کېږي، کوم چې د تمیم له قبیلې سره تړاو لري او د ذومال دلالت همېشه پر هغه سړي کېږي، کوم چې شتمن وي، هغه که هرڅوک وي او په هره زمانه کی چې وي.

تر دې وروسته یې (خصوصًا) ټکی ویلی دی، دا پر مخکني عبارت (عمومًا) عطف دی، د پوره عبارت معنا داسي ده: چې د صفت لپاره مشتق کېدل او غیر مشتق کېدل هېڅ فرق نلري په دې شرط چې وضع یې دداسي معنا لپاره وي، کومه چې په موصوف کي موجوده وي، هغه که د همېشه لپاره پکي موجوده وي، یا په عارضي توګه پکي موجوده وي، لکه: (مررت برجل ای رجل) دلته (ای رجل) پر کمال ادمیت (سړېتوب) دلالت کوي، کوم چې د مخکني رجل لپاره صفت دی، حال دا چې (ای) همېشه د کمال په معنا نه راځي، صرف دلته په دې کي دا معنا سته، دا راز په (مررت بهذا الرجل) کي (الرجل) د (هذا) صفت دی، ځکه چې هذا اسم اشاره پر ذات مبهم دلالت کوي او الرجل پر ذات معین او ذات معین دلالت کول دا داسي معنا ده کومه چې په متبوع یعني په (هذا) کي موجوده ده، نو کله چې (اذاکان وضعه لغرض المعنی) والا شرط پیدا سو، نو الرجل د ماقبل (هذا) لپاره صفت جوړول صحیح سو، دا راز په (مررت بزید هذا) کي هم (هذا) پر هغه معنی دلالت کوي، کومه چې په متبوع یعني (زید) کي موجوده ده، له همدې وجې نو د (هذا) د زید لپاره صفت جوړول صحیح سو، حال دا چې الرجل او هذا همېشه د صفت لپاره نه کېږي.

خلاصه دا سوه چې په لومړي مثال کي (تمیميٌ)، په دوهم کي (ذومال) او په درېیم کي (ای رجل)، په څلورم کي (الرجل) او په پنځم کي (هذا) کوم چې صفت

جوړېږي، دا ټول له اسم مشتق نه کېدو سره سره صفت جوړ سوي دي، له دې ځخه ثابته سوه چي د نحوي د ځيني علماؤ قول صحيح نه دی.

دوهمه خبره: د جمله خبريه په ذريعه د نکره صفت راوړل:

و توصف النكرة بالجملة الخبرية: په دې عبارت کي د کافيه ملاصاحب رحمه الله له صفت سره تړلې يوه مسئله بيانوي، چي موصوف که چېري نکره وي، نو لکه څرنګه چي اسم نکره د مفرد په شکل دده صفت جوړېدای سي، دا راز د جمله خبريه په صورت هم دده جوړېدای سي، هغه که جمله که اسميه وي، که فعليه، لېکن که چېري موصوف معرفه و، نو جمله خبريه دده لپاره صفت نسي کېدای، ځکه چي جمله من حيث الجملة معرفه نه وي، ځکه چي پکي د معرفه کومه علامه نه وي، له همدې وجې دا دنکره په حکم اخستل کېږي او د نکره لپاره صفت جوړېږي، ددې په مقابل کي که چېري يو ثوک دا د معرفه لپاره صفت جوړول غواړي، نو نه صحيح کېږي، ځکه چي موصوف معرفه کېږي او دا نکره، حال دا چي د موصوف او صفت دواړو تر مينځ مطابقت ضروري وي.

دا راز که چېري کومه جمله انشائيه دده لپاره صفت جوړول غواړي، نو هم نه صحيح کېږي، ځکه چي صفت پر هغه معنا دلالت کوي، کومه چي په موصوف کي له پخوا لا موجوده وی، حال دا چي جمله انشائيه خو ايجاد د مالم يوجد لپاره راځي.

ويلزم الضمير: د کافيه ملاصاحب رحمه الله د مذکوره مسئلې لپاره يو شرط لګولی دی، چي کله جمله خبريه تاسو د نکره لپاره صفت جوړوئ، نو ضروري ده، چي په جمله خبره کي يو داسي ضمير وي، کوم چي د مخکي نکره موصوفه وطرفته راجع وي، دا شرط ځکه ورسره لګول سوی چي جمله من حيث الجمله مستقل کلام وي، د کوم چي ماقبل او مابعد ربط نه غواړي، صفت ددې پر خلاف دی، ځکه چي هغه له خپل موصوف سره ربط غواړي، نو دلته شرط لګول کېږي، چي لږ تر لږه به په داسي جمله کي د ربط لپاره يو ضمير هرومرو وي.

## د حال او دهغه د متعلق په ذريعه صفت راوړل

**دريمه خبره:** د حال او دهغه د متعلق په ذريعه صفت راوړل:

و توصف بحال الموصوف وبحال متعلقه: په دې عبارت کي د کافیه ملاصاحب رحمه الله د صفت متعلق یوه مسئله بیانوي، لېکن تر دې مخکي دې خبرې ته غوږ سئ! چي صفت پر دوه قسمه دی: ①: صفت بحاله او ②: صفت بحال متعلقه.
صفت بحاله: دا معنا چي صفت پر داسي معنا دلالت کوي، کومه چي د موصوف په ذات کي موجوده وي، لکه (جاءنی رجلٌ عالمٌ) دلته (عالمٌ) د (رجل) صفت دی او د علم صفت د رجل په ذات کي موجود دی.
**صفت بحال متعلقه**: د دې مطلب دادی، چي صفت پر داسي معنا دلالت کوي، چي د موصوف په متعلق کي موجوده وي، لکه (جاءنی رجلٌ عالمٌ ابوه) دلته (عالم) د (ابوه) صفت دی، کوم چي د رجل متعلق دی.
تر دې تمهېد وروسته مسئلې ته غوږ سئ! چي د موصوف صفت مذکوره د دوو قسمونو په ذریعه راتلای سي:
د لومړي قسم په هکله وایې: چي (فالأوّل یتبعه فی الاعراب....) یعني صفت بحاله له خپل موصوف سره په لسو شیانو کي مطابق کېدل ضروري دي: په اعراب، معرفه، نکره کېدو کي، په مفرد، تثنیه او جمع کېدو کي، په مذکر، مؤنث کېدو کي، له دغو ټولو څخه په یوه وخت کي د څلورو راتلل ضروري دي، یعني له رفع، نصب او جر څخه د یوه او له معرفه او نکره څخه د یوه، او له افراد، تثنیه او جمع څخه د یوه او له تذکیر او تانیث څخه د یوه کېدل چي ټول څلور کېږي، یعني په دغو څلورو کي د صفت او موصوف برابرېدل ضروري دي، لکه (جاءنی رجل عالمٌ)، دلته رجل (موصوف) او عالم (صفت) په څلورو شیانو کي برابر دي (افراد، نکره، تذکیر او رفع).

## سلم (۱۰۰) درس

## له موصوف او صفت سره تړلې څو مهمي قاعدې او تفریعات

والثانی یتبعه فی الخمسة الأُول وفی البواقی کالفعل ومن ثم حسَنَ قام رجلٌ قاعدٌ غلمانُه وضعُف قاعدون غلمانُه ویجوز قعودٌ غلمانه.

**ترجمه:** او د دوهم (صفت بحال متعلقه) له خپل موصوف سره په پنځو شیانو کي مطابق کېدل ضروري دی او په باقي (پنځو) کي د فعل په څېر کېږي، له همدې وجې د قام رجلٌ قاعدٌ غلمانه ترکیب حسن او د قاعدون غلمانه ترکیب ضعیف دی او د قعود غلمانه ترکیب (صرف) جائز دی.

**تشریح:** د نن په سبقه کي درې خبرې دي:

①: د صفت بحال متعلقه حکم، ②: د صفت بحال متعلقه په هکله څو مهمي قاعدې، ③: پر لومړۍ قاعده تفریعات.

**د صفت د دوهم قسم حکم**

**لومړۍ خبره:** د صفت د دوهم قسم حکم:

په مخکني درس کي مونږ د صفت د لومړي قسم بیان وکړ، دلته دوهم قسم یعني صفت بحال متعلقه بیانوو، چي والثانی یتبعه فی الخمسة الأول یعني دوهم قسم کوم چي صفت بحال متعلقه دی دده له خپل موصوف سره په پنځو شیانو کي مطابقت ضروري دی یعني په رفع، نصب، جر، تعریف او تنکیر کيَ، په یوه وخت کي له دغو پنځو څخه د دوو موجودېدل ضروري دي، یعني له رفع، نصب او جر څخه د یوه او له تعریف او تنکیر څخه د یوه کېدل ضروري دي، لکه (جاءنی غلامان عالمةٌ امهما) دلته (غلامان) موصوف او (عالمةٌ) یې صفت دی، په دې کي صرف په دوو شیانو کي مطابقت موجود دی: ①: غلامان او عالمةٌ دواړه مرفوع دي، ②: دواړه نکره دي، له دغو دوو پرته په نورو کي په افراد، تثنیه، جمع، تذکیر او تانیث کي یې مطابقت نسته، ځکه غلامان تثنیه او عالمة مفرد دی، دا راز غلامان مذکر او عالمة مؤنث ده.

**دوهمه خبره:** له صفت بحال متعلقه سره تړلې څو مهمي قاعدې:

وفی البواقی کالفعل: د کافیه ملاصاحب رحمة الله علیه وایې: چي صفت بحال متعلقه په پاته پنځو شیانو (افراد، تثنیه، جمع او تذکیر او تانیث) کي د فعل په ډول دی، علامه ابن حاجب رحمة الله علیه ته الله جل جلاله یو داسي مهارت ورکړی دی، چي په څو لنډو الفاظو یې د ډېرو شیانو وطرفته اشاره کړي وي، مثلا په مذکوره تر مختصر لا مختصر عبارت کي یې د دغو درو قاعدو وطرفته اشاره کړې دی:

①: لكه څرنګه چې تاسو په نحومير كې دا قاعده ويلې، چې فاعل كه چيرې اسم ظاهر وي، نو فعل هميشه مفرد راوړل كيږي، فاعل كه مفرد وي، كه تثنيه او جمع وي، لكه (دخل التلاميذ فى الفصل) او د صيغه صفت معامله هم داسې ده، يعنې دده فاعل كه چيرې اسم ظاهر وي، نو صيغه صفت هميشه مفرد راوړل كيږي، لكه (مررت برجل قاعدٍ غلامه) او (مررت برجلين قاعد غلاماهما) او (مررت برجال قاعدٍ غلمانهم) وګوره! په دې ټولو مثالونو كې (قاعدٌ) صيغه دصفت مفرد راغلې ده، كه څه هم موصوف يې ورسره بدل ، بدل راغلى دى، خو فاعل يې د اسم ظاهر په صورت كې موجود و ، له همدې وجې (صيغه د صفت) مفرد راوړل سوې ده.

②: دا راز تاسو ويلې، چې د فعل فاعل كه چيرې مذكر يا مؤنث حقيقي وي، ليكن ددواړو تر مينځ كوم فصل نه وي، نو په مينځ كې يې مطابقت ضروري وي، يعني فاعل كه چيرې مذكر وي، نو فعل به هم مذكر راوړل كيږي، لكه (كتب الطالبُ درسَهُ) او كه چيرې فاعل مؤنث حقيقي وي، نو فعل به هم مؤنث راوړل كيږي، لكه (نظفت المرأة ثيابها)، نو همدا سې ده كه دصيغه صفت فاعل مذكر وي، يا مؤنث حقيقي وي، فصل يې تر مينځ نه وي، نو مطابقت ضروري دى، لكه مررت برجل قاعدٍ غلامُه او (مررت برجل قائمةٍ جاريتُه) دلته د صيغه صفت فاعل (جاريته) مؤنث حقيقي بيله فصله دى، له همدې وجې (قائمة) مؤنث راوړل سوى دى.

③: كه چيرې د فعل فاعل مؤنث غير حقيقي وي، يا مؤنث حقيقي وي، ليكن دده او د بل فعل تر مينځ فصل راغلى وي، نو فعل مذكر او مؤنث دواړه راتلاى سي، لكه (طلع الشمس او طلعت الشمس) دا راز (وصلت الى المدرسة تلميذةٌ) او (وصل الى المدرسة تلميذة)، نو دلته په صيغه صفت كې هم داسې ده، لكه د مؤنث غير حقيقي مع الفصل مثال (مررت برجل قائم فى الدار، جاريته يا قائمة فى الدار جاريته).

**دریمه خبره:** پر لومړۍ قاعده تفریعات:

ومن ثم حَسُنَ قام رجلٌ قاعدٌ غلمانُه و ضعف قادون غلمانه ویجوز قعودًا غلمانه، په دې عبارت کې مصنف رحمه الله علیه له مذکوره قواعدو څخه پر لومړۍ قاعده درې تفریعاتې کوي:

**لومړۍ تفریع:**

قام رجلٌ قاعدٌ غلمانه: چې د مذکوره قاعدې په رڼا کې دا مثال بلکل صحیح دی، ځکه د (قاعدٌ) صیغه صفت فاعل (غلمانه) د اسم ظاهر په صورت کې خو د قاعدې له مخې (قاعدٌ) مفرد راوړل کیږي.

**دوهمه تفریع:**

وضُعِّف قاعدونَ غلمانُه: ددې پوره عبارت داسې دي: (قام رجلٌ قاعدون غلمانه) ددې په هکله علامه ابن حاجب رحمه الله علیه وایې: چې داسې ویل ضعیف دي، ځکه (غلمانه) فاعل اسم ظاهر دی، له دې سره سره صیغه صفت د جمع په صیغه سره راوړل سوی دی.

**فائده:** په داسې ځای کې فعل او د صفت صیغه مفرد راوړل ځکه ضروري دي، چې د تثنیه او جمع په صورت کې په فاعل کې تعدد راځي، لکه په مثال مذکور (قاعدون غلمانه) کې چې (غلمانه) هم فاعل دی او په (قادون) کې هم ضمیر فاعل دی.

**یو سوال او دهغه جواب:**

دلته به طالب العلم ته یو سوال پیداکیږي، چې لومړنۍ قاعده وجوبي وه او د وجوب مخالفت په عدم جواز تعبیریږي، نو څه وجه ده چې په (قاعدون غلمانه) کې د قاعده وجوبي د مخالفت سره سره او د تعدد فاعل سره سره یې د (لایجوز یا لایصح) پر ځای (وضعف) حکم کړی، له دې څخه معلومیږي چې ددې مطلب دادی چې داسې ویل جائز خو دي، لیکن په جواز کې یې څه ناڅه کمزوري سته؟

د دې جواب دادی چې دکافیه ملاصاحب رحمه الله د نحوي د نورو علماؤ په رعایت کولو سره دا ضعیف بللی جائز یې نه دی بللی، ځکه د نحو د علماؤ په دې کې څو اقوال دي مثلاً: ①: بعض علماء نحو وایې: چې واو اونون فاعل نه دي، بلکې دا خو صرف د جمع علامې دي او فاعل (غلمانه) دی.
②: او بعض علماؤ ویلي دي: چې (قاعدون) خبر مقدم دی او (غلمانه) مبتداء مؤخره ده.
③: او د بعض علماؤ په نزد واو او نون مبدل منه دي او (غلمانه) بدل، بیا بدل او مبدل منه دواړه د (قاعدون) لپاره یوازې فاعل دي.
خلاصه دا چې دا علماء وایې: چې د مذکوره قاعدې د خرابۍ علت تعدد دفاعل دی او هغه دلته نسته، ځکه نو دا مثال صحیح کېږي، له همدې وجې د کافیه ملاصاحب رحمه الله هم د دغه رعایت کولو له وجې (وضعُف) وویل.

**درېیمه تفریع:**

ویجوز قعودٌ غلمانه، ددې پوره عبارت داسې دي: (قام رجلٌ قعودٌ غلمانه) ددې په اړه وایې: چې دا جائز دي، ځکه (قعود) دجمع مکسر صیغه ده او جمع مکسر د مفرد په حکم کې وي، لېکن دایې (حسن) ځکه ونه بلل، چې دا که څه هم د مفرد په حکم کې دی، لېکن حقیقي مفرد خو بیا هم نه دی، له همدې وجې یې صرف (یجوز) وویل.

**یوسل یوَم (۱۰۱) درس**

**له موصوف اوصفت سره تړلې اهمې قاعدې**

والمضمر لایوصَف ولایوصَف به والموصوف اخص او مساوٍ ومن ثم لم یوصف ذواللام الا بمثله او بالمضاف الی مثله، وانما التُزمَ وصف باب (هذا) بذی اللام للابهام ومن ثم ضَعُف مررت بهذا الابیض وحَسُنَ بهذا العالم.

**ترجمه:** او ضمیر نه موصوف کېدای سي او نه صفت او موصوف یا خو اخص وي، یا مساوي او له همدې وجې د معرف باللام صفت نه راوړل کېږي، خو که چېري راغلی و، نو صفت به هم دده په مثل وي، یا به دده د مثل وطرفته مضاف

وي، او يقيناً لازم بلل سوی دداسي مثالونو صفت معرف په لام سره د ابهام له وجې څخه، له همدې وجې (مررت بهذاالابيض) ترکيب ضعيف دی او (مررت بهذاالعالم) حسن دی.

**تشريح:** د نن په سبقه کي درې خبرې دي:

①: د ضمير په ذريعه صفت راوړل، ②: له موصوف او صفت سره تړلې يوه قاعد او تفريعات، ③: د اسم اشاره له صفت سره تړلې يوه قاعده او تفريعات.

## د ضمير په ذريعه صفت راوړل

**لومړۍ خبره:** د ضمير په ذريعه صفت راوړل.

والمضمر لا يوصف ولايوصف به: په دې عبارت کي يوه قاعده بيانېږي، چي ضمير نه موصوف کېدای سي او نه صفت، ځکه چي صفت به يا د تعريف لپاره وي، يا به د تخصيص لپاره او ضمير خو اعرف المعارف دی، دده لپاره دزيات وضاحت ضرورت نه وي او نه د تعريف، لهذا ضمير موصوف نسي کېدای.

او صفت هم نسي کېدای، ځکه چي د اخبره را روانه ده چي د موصوف تر صفت اخص کېدل، يا لږ تر لږه ورسره برابرېدل ضروري دي، حال دا چي په تعريف او تخصيص کي تر ضمير زيات په هېڅ شی کي نه تعريف سته او نه تخصيص، ځکه ضمير اعرف المعارف دی.

او دوهمه وجه داده چي صفت هغه وي، چي پر داسي معنی دلالت کوي، کومه چي په موصوف کي موجوده وي او د ضمير د معنی پر ځای رأسًا پر ذات دلالت کوي، له همدې وجې ضمير صفت هم نسي کېدای.

دوهمه خبره: له موصوف او صفت سره تړلې يوه قاعده:

والموصوف اخص اومساوٍ: په دې عبارت کي د کافيه ملاصاحب رحمة الله عليه د اسم موصوف درجه بيانوي، چي د موصوف لپاره ضروري ده چي د تعريف او تخصيص په اعتبار تر خپل صفت زيات اعرف او اخص وي، يا دا چي لږ تر لږه ورسره برابر خو هرومرو وي، ځکه صفت د موصوف تابع وي او متبوع تل تر خپل تابع اعلیٰ او لوړ وي، که نه د فرع پر اصل لوړتيا لازمېږي او دا صحيح نه ده.

پر مذکوره قاعده یوه تفریع:

ومن ثم لم یوصف ذواللام الا بمثله او بالمضاف الی مثله:

پر مخکني اصل دلته تفریع بیانوي، لېکن تر دې مخکې دا خبره زده کړئ، چي د معرفه په ټولو قسمونو کي اعرف المعارف ضمائر دي، بیا اعلام او تر دې وروسته اسماء اشارات او بیا تر دې وروسته معرف باللام او اسماء موصولات دواړه سره برابر دي.

اوس تفریع ته غوږ سئ! چي موصوف که چېري معرف باللام وي، نو دده صفت هم دده په مثل کېدل، یا دمثل وطرفته مضاف کېدل ضروري دی، ددې ټوټل څلور قسمونه جوړېږي:

①: د موصوف په ډول صفت هم معرف باللام وي، لکه جاءنی الرجل الفاضل، ②: د موصوف په ډول پخپله خو معرف باللام نه وي، لېکن د بل معرف باللام وطرفته مضاف وي، لکه: جاءنی الرجل صاحب الفرس یا صاحب القلم، ③: له اسماء موصولاتو څخه کوم یو دده صفت جوړ سوی وي، لکه: جاءنی الرجل الذی کان عندک امس، ④: له اسماء موصولاتو څخه د یوه وطرفته مضاف وي، لکه: جاءنی الرجل صاحب الذی فی الدار.

حاصل دا چي د معرف باللام موصوف صفت صرف همدا څلور صورتونه دي، ځکه که چېري د کوم بل صورت په ذریعه صفت راوړل سي، نو دتابع پر متبوع فوقیت لازمېږي، ولې په معرفه کېدو کي معرف باللام د معرفه تر ټولو قسمونو کمزوری معرفه دی، خو یوازې اسماء موصولات له ده سره برابر دي.

**دریمه خبره**: د اسم اشاره له صفت سره تړلې یوه قاعده:

وانما التزم وصف باب هذا بذاللام للابهام: د کافیه ملاصاحب رحمه الله ددې عبارت په ذریعه د یوه سوال جواب کوي: سوال دادی: لکه څرنګه چي د معرف باللام صفت معرف باللام، موصول او مضاف ومعرف باللام والموصول راځي، نو دا راز د اسماء اشارت صفت هم په دغو ټولو صورتونو سره راتلل پکار دي، ځکه دا

تول په معرفه کېدو کي تر اسماء اشاراتو په درجه کي کښته دي، حال دا چي داسماء اشارات صفت صرف معرف باللام راتلای سي؟

**جواب:** ددې جواب دای، لکه څرنګه چي موږ په نحومېر کي ویلې وه، چي اسماء اشارت او اسماء موصولات ته مبهمات هم ویل کېږي، ځکه چي په دوی کي د جنس ابهام وي او جنس ابهام معرف باللام ختموي، ځکه د الف لام وضع د تعریف لپاره راغلې ده، له دې پرته هغه اسم کوم چي د معرف باللام و طرفته مضاف وي، په هغه کي پخپله ابهام وي، کوم چي د مضاف الیه په ذریعه لیري کېږي، نو کوم اسم چي په خپله له ځان څخه په ابهام لېري کېدو کي بل چاته محتاج وي، نو د بل چا ابهام به څنګه لیري کوي، خو داسم موصول او اسم اشاره صفت واقع کېدای سي، لکه: (مررت بهذا الذی اکرم).

یا سوال کېږي، چي کله داسماء اشارت صفت د معرف باللام په ډول اسم موصول هم راتلای سي، نو مصنف رحمه الله علیه ولې ذکر نه کړ؟

**جواب:** چي کله د معرف باللام ذکر وسو، نو اسم موصول پخپله پکي داخلېږي، ځکه اسم موصول او معرف باللام په معرفه کېدو کي سره برابر دي، نو که چېري یو صفت جوړ سي او بل نسي جوړېدای، نو ترجیح بلامرجح راځي.

پر مذکوره قاعده یوه تفریع:

ومن ثم ضعف مررت بهذا الأبیض: د اسم اشاره صفت معرف باللام هغه مهال راتلای سي، کله چي هغه له ده څخه ابهام لیري کولای سي، که نه نسي راتلای، مثلاً یو داسي معرف باللام اسم وي، چي له کوم جنس سره خاص نه وي، نو هغه داسم اشاره لپاره صفت نسي جوړېدای، ددغه اصل په مخکي ښودلو سره ویل سوي چي: (مررت بهذا الابیض) ویل ضعیف دي، ځکه (الابیض) د (هذا) له جنس څخه ابهام نه دی لېري کړی، ځکه چي (الابیض) له کوم جنس سره خاص نه دی، بلکي د هر جنس سپین فرد ته (الابیض) ویل کېږي.

دلته سوال کېږي، چي کله (الابیض) له (هذا) څخه ابهام لیري نکړ، نو د کافیه ملاصاحب رحمه الله علیه به (لایجوز، یا لایصح) ویل، (ضَعُف) یې ولې وویل؟

د دې جواب دادی چې (الابیض) که څه هم من کل الوجوه له (هذا) څخه ابهام نه دی لیري کړی، خو څه نا څه یې هرومرو لیري کړی دی، هغه داسې چې زما تګ له کوم تور، سره او ژېړ سره نه دی سوی، بلکي له سپین سره سوی دی، نو ددغه لږ ابهام لیري کېدو په اعتبار کولو سره مصنف رحمه الله ورته (ضعف) وویل.

وحسن بهذا العالم: چې (مررت بهذا العالم) ویل بلکل صحیح دي، ځکه دلته (العالم) من کل الوجوه ابهام لیري کړی دی، ځکه چې خبره یې واضحه کړې ده چې مشارالیه انسان دی او له انسانانو څخه نارینه دی او بیا له نارینه وو څخه هم عالم مراد دی (کما فی تقریر الکافیه).

## یوسل اودوهم (۱۰۲) درس

## ددوهم تابع (عطف بیان) بیان

العطف تابعٌ مقصودٌ بالنسبة مع متبوعه و یتوسّط بینه وبین متبوعه احدالحروف العشرة وسیأتی مثل: قام زیدٌ وعمرٌو واذا عُطفَ علی المرفوع المتصل اکّد بمنفصلٍ، مثل: ضربتُ انا وزیدٌ الا ان یقع فصلٌ فیجوز ترکه مثل: ضربتُ الیومَ وزیدٌ.

**ترجمه:** عطف هغه تابع دی چې مقصود بالنسبة وي له خپل متبوع سره او دده او دمتبوع ترمینځ یې له لسو حروفو څخه یو حرف راغلی وي او ددې بیان به درته راسي، لکه (قام زیدٌ وعمرٌو) او کله چې عطف وسي پر ضمیر مرفوع متصل، نو دده تاکید کېږي په ضمیر مرفوع منفصل سره، لکه (ضربتُ انا وزیدٌ) خو که فاصله واقع وي، نو د ده (تاکید) پرېښودل جائز دي، لکه (ضربتُ الیوم وزیدٌ).

**تشریح:** د نن په سبقه کي درې خبرې دي:

①: د عطف بیان تعریف، ②: په مذکوره تعریف کي دقیدونو فائدې، ③: له عطف بیان سره تړلې یوه مهمه مسئله.

## دعطف بیان تعریف

**لومړۍ خبره**: دعطف بیان تعریف:

العطف: تابعٌ مقصودٌ بالنسبة مع متبوعه، یعني عطف په حرف سره هغه تابع دی، چې له خپل متبوع سره په نسبت مقصود وي، یعني د کومې خبرې نسبت چې متبوع ته سوی وي، هماغه نسبت به تابع ته هم سوی وی، وروسته د کافیه ملاصاحب رحمة الله علیه ددې لپاره یو شرط بیانوي، چې (ویتوسط بینه وبین متبوعه احدالحروف العشرة)، یعني د عطف بالحرف د جواز لپاره ضروري ده، چې دده او د متبوع تر مینځ به له لسو حروف عاطفه څخه یو حرف موجود وي، لکه (جاءنی زیدٌ وعمرٌو)، ګوره !دلته زید متبوع دی او عمریې تابع دی او تر مینځ یې (واو) حرف عطف موجود دی او لکه څنګه چې مقصود په نسبت سره زید دی، بلکل همداسې عمرو هم دی، ځکه متکلم ته د راتګ نسبت لکه څنګه چې زید ته سوی دی، همداسې عمر ته هم سوی دی، تر دې و روسته د کافیه ملاصاحب وایې: (وسیأتی) یعني ددغو حروف عاطفه تفصیلي بیان نژدې د حروفو په بحث کې راتلونکی دی.

**دوهمه خبره**: په مذکوره تعریف کې دقیدونو فائدې:

العطف تابعٌ مقصودٌ بالنسبة مع متبوعه: په دې کې (العطف) معرف او (تابعٌ) یې تراخیره پورې تعریف دی او په تعریف کې (تابعٌ) جنس دی، کوم چې ټولو توابعو ته شامل دی او (مقصودٌ بالنسبة) لومړی فصل دی ددې په ذریعه له بدل پرته نور توابع یعني صفت، تاکید او عطف بیان وزي، ځکه دا درې سره مقصود بالنسبة نه دي، بلکې مقصود بالنسبة په دوی کې صرف ددوی متبوع دی، (مع متبوعه) دوهم فصل دی، ددې په ذریعه بدل وزي، ځکه هغه که څه هم پخپله مقصود بالنسبة دی، لیکن دده متبوع مقصود بالنسبة نه وي، لکه (جاءنی زیدٌ حمارًا) په دې کې د مجیئت نسبت صرف د حمار وطرفته سوی دی، نه چې د زید وطرفته.

## له عطف سره تړلې څواهمې مسئلې

**دریمه خبره**: له عطف سره تړلې څو اهمې مسئلې:

و اذا عُطف على الضمير المرفوع المتصل اكّد بمنفصل.........په دې پوره عبارت كې د كافيه ملاصاحب له عطف سره تړلې څو اهمې مسئلې راته بيانوي، چې يكې لومړۍ مسئله به نن تاسو ووايااست او پاتې به په راتلونكې درس كې ووايااست انشاءالله تعالىٰ.

**لومړۍ مسئله: د اسم ظاهر پر ضمير مرفوع متصل عطف:**

واذا عُطف على الضمير المرفوع المتصل اكّد بمنفصل: لومړۍ مسئله داده چې كله پر ضمير مرفوع متصل كوم اسم عطف سي، نو تر عطف مخكې په ضمير مرفوع منفصل سره دده تاكيد كول ضروري دى، وجه يې داده چې ضمير مرفوع متصل لفظًا او معنًا د شدت اتصال په وجه د مخكنۍ كلمې د يوه جزء په ډول وي او د كلمې پر جزء د اسم ظاهر عطف كول جائز نه دي، كه نه د كلمه مستقله پر جزء د كلمې عطف لازمېږي، كوم چې صحيح نه دى، لكه: (ضربتُ انا وزيدٌ)، كله چې يې په منفصل سره تاكيد وسي، نو ظاهرا دده پر تاكيد عطف وسو كوم چې جزء د كلمې نه دى، كه څه هم په حقيقت كې پر همدغه ضمير عطف سوى دى.

ددې بالمقابل كه چېرې پر ضمير مرفوع منفصل عطف سوى وي، يا پر ضمير منصوب يا مجرور عطف سوى وي، نو بيله تاكيد څخه پر هغه د اسم ظاهر عطف كېداى سي، لكه (اناقائم وزيدٌ) او (ضربتک وزيدًا) او (مررت بک وبزيدٍ).

الّا ان يقع فصلٌ فيجوز تركه: چې كه چېرې پر ضمير مرفوع متصل اسم ظاهر عطف سوى وي، نو دده لپاره د مذكوره قاعدې پر بنسټ ضمير منفصل تاكيد راوړل لازمي دي، لېكن كه چېرې د معطوف عليه او معطوف تر مينځ فصل وي، نو هلته د تاكيد راوړل كه څه هم جائز خو دي، لېكن ضروري نه دي، ځكه دلته فاصله د تاكيد پر ځاى درېږي، لكه: (ضربتُ اليوم وزيدٌ) او د الله جل جلاله په قول كې هم دي: (مَا اَشْركنا ولا آبائنا) دلته د (ابنائنا) عطف د (ما اشركنا) پر ضمير مرفوع متصل سوى دى، لېكن تر مينځ يې (لا) زائده فصل راغلى دى، ځكه يې نو په ضمير منفصل سره تاكيد نه دى سوى.

د مصنف رحمه الله د اسلوب له تعبیر یعني (فیجوز ترکه) څخه څرګندیږي چي په داسي ځای کي تاکید هم کیدای سي، لکه د الله جل جلاله قول: (فکبکبوا فیها هم والغاوون) دلته د (فکبکبوا) پر ضمیر مرفوع متصل (الغاوون) عطف سوی دی، تر مینځ یې (فیها) فصل موجود دی، لیکن بیا یې هم د (هم) ضمیر مرفوع منفصل په ذریعه تاکید سوی دی، دا راز (ماعبدنا من دونه من شئ نحن ولا آبائنا) په دې کي د (عبدنا) ضمیر مرفوع متصل معطوف علیه او (ولاآبائنا) معطوف علیه دی، تر مینځ یې (من دونه من شئ) دومره لویه فاصله هم موجوده ده، لیکن بیا یې هم په (نحن) ضمیر مرفوع منفصل سره تاکید سوی دی.

## یو سل او دریم (۱۰۳) درس

### له عطف بیان سره تړلې دوهمه، دریمه او څلورمه مسئله:

و اذا عُطف على الضمير المجرور أُعيدَالخافضُ نحو: مررت بكَ وبزيدٍ والمعطوف فى حكم المعطوف عليه، ومن ثم لم يجز فى ما زيدٌ بقائم او قائمًا ولا ذاهبٌ عمروٌ الا الرفعُ وانما جاز الذى يطيرِ فيغضب زيدُالذبابُ، لانها فاء السببية و اذا عُطف على عاملين مختلفين لم يجز، خلافًا للفراء الا فى نحو: فى الدار زيدٌ والحجرة عمرٌو، خلافًا لسيبويه.

**ترجمه:** او کله چي پر ضمیر مجرور عطف وسي، نو جار ومجرور راوړل کیږي، لکه (مررتُ بک وبزید) او معطوف د معطوف علیه په حکم کي کیږي، له همدې وجې جائز نه دی (مازیدٌ بقائم او قائمًا او لاذاهبٌ عمرٌو) خو رفع او بېله شک څخه جائز دي (الذي يطير فيغضب زيدُالذبابُ)، ځکه فاء د سببیت لپاره ده او کله چي عطف وسي پر دوو مختلفو عاملانو نو جائز نه دی، دا خبره دامام فراء خلاف ده، خو د (فی الدار زیدٌ او الحجرة عمرٌو) په څېر ترکیبونو کي دا دامام سیبویه خلاف دی.

**تشریح:** د نن په سبقه کي له عطف بیان سره د تړلې دوهمې، دریمې او څلورمې مسئلې او په اخیر کي د دریو مذهبونو بیان کیږي.

**دوهمه مسئله: د اسم ظاهر پر ضمیر مجرور عطف:**

و اذا عُطف على الضمير المجرور اعيدالخافض: دوهمه مسئله داده چي که چېري اسم ظاهر پر ضمیر مجرور متصل عطف سي، نو پر معطوف د جار اعاده (راګرزول) لازمي دي، هغه جار که حرف وي، لکه (مررت بک وبزيد) يا اسم مضاف وي، لکه (المال بينى وبينک)، په داسي صورت کي جار(هغه که جار ومجرور وي، يا مضاف ومضاف اليه وي)، ځکه راګرزول کېږي چي ددوی تر مينځ شدت اتصال وي او د همدغه سخت اتصال له وجې ګواکي چي دا يوه کلمه ده، اوس که چېري بېله اعادي دجار پر مجرور عطف وسي، نو د کلمه پر جزء د مستقلي کلمي عطف کېدل لازمېږي، کوم چي جائز نه دی.

**درېيمه مسئله د معطوف د اعراب حکم:**

والمعطوف فى حكم المعطوف عليه: چي معطوف د همېشه لپاره د معطوف عليه په حکم کي وي، يعني کوم شی چي د معطوف عليه لپاره جائز وي، هماغه شی د معطوف لپاره هم جائز دی او کوم شی چي دده لپاره ممنوع وي، هماغه د معطوف لپاره هم ناجائز دی، لکه په (جاء زيدٌ وعمرٌو) کي پر (زيدٌ) د فاعل کېدو له وجې رفع واجب او نصب وجر ممنوع دي، بلکل همداسي پر عمرٌو هم رفع واجب او نصب وجر ممنوع او ناجائز دي، دا راز که چېري معطوف عليه د يو شی صفت يا خبر وي، يا صله يا حال وي، نو معطوف به هم د هماغه شی صفت، صله، يا حال جوړېږي، د صفت مثال (قام زيدٌ العالمُ والعاقل) په دې مثال کي لومړی (العالم) د (زيدٌ) صفت دی او معطوف عليه دی ، نو دوهم (العاقل) کوم چي معطوف دی دا هم د (زيدٌ) صفت کېږي.

د خبر مثال (زيدٌ عاقلٌ وشاعرٌ) په دې مثال کي (عاقلٌ) معطوف عليه دی، (زيدٌ) يې خبر دی او (شاعرٌ) معطوف دی پر (عاقل)، دا هم د (عاقل) په ډول د (زيد) خبر واقع کېږي.

د صله مثال (قام الذى صلّى وصامَ) په دې مثال کي (صلى) معطوف عليه دی او (الذى) يې صله ده او (صام) معطوف دی پر (صلى) او دا هم د (الذى) صله جوړېږي.

دا راز د حال مثال (جاءنی زيدٌ مشدودًا ومضروبًا) په دې مثال كې (مشدودًا) معطوف عليه دی او له (زيدٌ) څخه حال دی او (مضروبًا) پر (مشدودًا) عطف دی او داهم حال جوړېږي، نو (زيدٌ) لكه څرنګه چې د (مشدودًا) ذوالحال دی، همداسې د (مضروبًا) هم ذوالحال دی وقس على المثال الآخر قولَ الله سبحانه وتعالىٰ: (لتدخلن المسجدالحرام ان شاء الله آمنين محلقين رؤوسكم ومقصرين لاتخافون).

## پر مذكوره مسئله يوه تفريع:

ومن ثم لم يجز فی مازيدٌ بقائم او قائمًا ولاذاهبٌ عمرٌو الا الرفع: د كافيه ملاصاحب رحمه الله پر مخكې اصل (يعني معطوف د معطوف عليه په حكم كې وي) د مذكوره عبارت په ذريعه پر دغه اصل يوه تفريع كوي، چې په (مازيدٌ بقائمٍ ولا ذاهبٌ عمرٌو) يا په (ما زيدٌ قائمًا ولا ذاهبٌ عمرٌو) كې د (ذاهبٌ) رفع ويل جائز دي او نصب وجر يې دواړه ناجائز دي، ځكه دا كه چېرې منصوب، يا مجرور سي، نو دا پر (بقائم، يا قائمًا) عطف كېږي، حال دا چې دا دواړه نه صحيح كېږي، ځكه په (بقائم او قائمًا) دواړو كې (هو) ضمير فاعل موجود دی، كوم چې د زيد وطرفته راجع دی، لېكن په (ذاهبٌ) كې يو داسې ضمير نسته كوم چې د زيد وطرفته راجع وي، ځكه دده فاعل (عمرٌو) داسم ظاهر په شكل موجود دی، حال دا كه چېرې په معطوف عليه كې ضمير وو ، نو په معطوف كې هم ضمير ضروري دی كه نه د دواړو ترمينځ مطابقت نه راځي او د (والمعطوف فی حكم المعطوف عليه) قاعده ماتېږي،له همدې وجې د كافيه ملاصاحب پر (بقائم) مجرور او پر (قائمًا) منصوب باندې دده عطف ناجائز دی، نو دا مرفوع ويل كېږي، خبر مقدم كېږي او (عمرٌو) يې مبتداء مؤخره كېږي، مبتداء مؤخره سره له خبر مقدم جمله اسميه خبريه پوره جمله پر جمله عطف كېږي.

## د يوه مقدر سوال جواب:

**سوال:** چې تاسو مخكښې مثال صرف له دې وجې ناجائز باله چې هلته په معطوف عليه كې ضمير عائد موجود و او په معطوف كې نه و، حال دا چې په

(الذی یطیر فیغضب زیدُالذباب) کي (یغضب) پر (یطیر) عطف دہ، حال دا چي په (یطیر) کي یو ضمیر دی کوم چي د (الذی) اسم موصول وطرفته راجع دی او په (یغضب) کي هیڅ ضمیر عائد نسته او بیا هم د عربو په نزد دا ترکیب جائز دی؟

جواب: د کافیه ملاصاحب رحمه الله په (وانما جازالذی یطیر فیغضب زیدالذباب) سره جواب ورکوي:

**جواب:** چي وروركیه! دا ترکیب جائز دی او وجه یې داده چي (لانها فاء السببیة) یعني په (فیغضب) کي (فاء) عاطفه نه دہ، بلکي سببیه دہ، نو دا ترکیب د سبب او مسبب له ډلې څخه دی، نو کوم سوال نسو پاته، ځکه سوال هلته کېږي، چېري چي ترکیب دمعطوف او معطوف علیه له قبیلې څخه وي.

**دوهم جواب:** چي دلته فاء د عطف او سبب دواړو لپاره د ه او ضمیر چونکه د ربط لپاره راځي، نو ربط له پخوا لا موجود دی، ځکه د سبب او مسبب ترمینځ ربط موجود وي، نو د ضمیر راوړلو ضرورت پاته نسو، نو دا مذکور مثال صحیح سو.

**څلورمه مسئله:** د یوه حرف عطف په ذریعه د دوو عاملانو پر معمولونو عطف کول:

و اذا عُطف علی عاملین مختلفین لم یجز: له عطف سره تړلې اخیره مسئله داده چي آیا د یوه حرف عطف په ذریعه ددوو بېلابېلو عاملانو پر معمولونو عطف کول جائز دی، که نه؟ نو په دې هکله د کافیه ملاصاحب رحمه الله د درېو مذهبونو په حواله خبره کوي، لیکن تر دې مخکي د تمهید په ډول دا خبره زده کړئ، چي له (فی الدار زیدٌ والحجرة عمرٌو) څخه هر هغه ترکیب مراد دی چېري چي معطوف علیه مجرور مقدم وي او دده مابعد مرفوع یا منصوب وي او په معطوف کي هم داسي دي، مذکوره مثال د مرفوع و او د منصوب مثال (ان فی الدار زیدًا والحجرة عمرًوا) دی، تر دې تمهید وروسته د اصل مسئلې تفصیل او په هغه کي اختلاف ته غوږ سئ!

**لومړی مذهب:** د نحوي د جمهورو علماؤ:

و اذا عطف على عاملين مختلفين لم يجز....الا فى نحو: فى الدار زيدٌ والحجرة عمروٌ: جمهور نحاة وايي: دا راز عطف له (فى الدار زيدٌ والحجرة عمروٌ) پرته چيري هم روانه دی، او دا مصنف رحمه الله په (خلافًا للفراء) سره په را روان عبارت (الا فى نحو فى الدار زيدٌ والحجرة عمروٌ) كي بيان كړی دی.

ددوی دليل دادی چي حرف عطف يو كمزوری عامل دی، كوم چي د يوه عامل پر ځای خو دريدای سي، ليكن د دوو پر ځای نسي دريدای، او په مذكوره مثال كي ځكه جائز دی چي دا خلاف القياس له عربو څخه اوريدل سوی دی، په (فى الدار زيدٌ والحجرة عمروٌ) كي سره له دې چي د يوه حرف عطف په ذريعه ددوو بيلابيلو عاملانو (يعني د فی او ابتداء) پر دوو معمولانو (الدار او زيد) د دوو اسمونو (يعني الحجرة اوعمروٌ) عطف سوی دی، ليكن بيا هم ددوی په نزد دا صحيح دی، ځكه چي په دې كي مورډ دخل نسو كولای.

**دوهم مذهب دامام فراء:**

**خلافًا للفراء:** د امام فراء په نزد دا راز عطف كول مطلقًا جائز دی، د مطلقًا مطلب دادی چي كه د دغه مذكوره مثال په ډول كوم تركيب وي، يا له ده غير وي، هرځای جائز دی، دی پرخپله دعوه دوه دليلونه لري:

①: كله چي په مذكوره مثال كي د ټولو نحوي علماؤ په نزد په اتفاق عطف جائز دی، نو پر دغه مثال په قياس كولو په نورو ټولو تركيبونو كي هم جائز دی.

②: كله چي د يوه عامل پر معمول عطف كول صحيح دي، نو ددوو عاملانو پر معمول هم صحيح دی، لكه (ما كل سوداء تمرة والبيضاء شحمة) يعني نه خو هر تور شی خورما ده او نه هر سپين شی وازګه ده، ګوره په دې كي يو عامل (مامشابه بليس) دی او دوهم عامل (كل) دی، كوم چي مضاف دی او (سوداء) معمول دی د همدغه (كل)، (كل) مضاف سره له خپل مضاف اليه د (مامشابه بليس) اسم جوړيږي او (تمرةً) د (ما) دوهم معمول دی، ځكه چي د (ما) لپاره دا

خبرونه جوړیږي، اوس د (بیضاء) عطف پر (سوداء) او د (شحمةٌ) عطف پر (تمرةٌ) سوی دی، نو امام فراء وایې: چي دا راز کول هرځای جائزدي.

**دریم مذهب د امام سیبویه:**

**خلافًا لسیبویه:** امام سیبویه صاحب وایې: چي دا راز عطف کول مطلقًا جائزنه دی، ځکه چي حرف عطف د ضعیف عامل کیدو په وجه ددوو مختلفو عاملانو قائم مقام نسي کیدای.

او د (فی الدار زید والحجرة عمرو) په اړه وایې: چي لومړی خبره خو دا ده چي داهم صحیح نه دی، لیکن که چیري دا صحیح ومنل هم سي، نو دلته په معطوف کي حرف جر مقدر دی، چي د عبارت تقدیر داسي کیږي: (فی الدار زید وفی الحجرة عمرو) نو دا د عطف الجملة علی الجملة له قبیلې څخه سو، نه له فیما نحن فیه څخه.

خو تر ټولو صحیح مذهب د جمهورو علماؤ دی، ځکه چي هغه له افراط (زیاتوب) او تفریط (کمي) څخه هم خالي دی او مصنف رحمه الله علیه هم دا مخکي ذکر کړی دی، چي ترجیح یې معلومیږي.

**یو سل او څلورم (۱۰۴) درس**

**د دریم تابع (تاکید) بیان**

التاکید تابعٌ یُقرّر امر المتبوع فی النسبة اوالشمول وهو لفظیٌّ ومعنویٌّ، فاللفظی تکریر اللفظ الأول نحو: جاءنی زیدٌ زیدٌ ویجری فی الألفاظ کلّها والمعنوي بالفاظ محصورةٍ وهی نفسه وعینه وکلاهما وکلّه واجمع واکتع وابتع وابصع، فالأولان یعمّان باختلاف صیغتهما وضمیرهما، تقول: نفسه ونفسها وانفسهما وانفسهم وانفسهنّ والثانی للمثنیْ، تقول: کلاهما وکلتاهما والباقی لغیرالمثنیْ باختلاف الضمیر فی کله وکلها وکلهم وکلهنّ والصیغ فی البواقی، تقول: اجمع وجمعاء واجمعون وجمع.

**ترجمه:** تاکید هغه تابع دی، کوم چي دمتبوع حال په نسبت یا شاملېدو کي ښخوي او (تاکېد) لفظي او معنوي ته وېشل کېږي، بیا تاکید لفظي د لومړي لفظ مکرر کېدو ته ویل کېږي، لکه (جاءنی زیدٌ زیدٌ) او تاکېد په ټولو الفاظو کي جاري کېږي او تاکېد معنوي له محصوره الفاظو سره مخصوص دی، هغه الفاظ (نفسٌ، عَیْنٌ و کلاهما و کلُّه واجمع واکتع وابتع وابصع) دي، بیا لومړی دوه (نفسٌ او عینٌ) عام دي له خپلو صیغو او ضمېرو سره په بدلېدو سره، لکه چي ووایې: (نفسه ونفسها وانفسهما وانفسهم او انفسهنّ) او دوهم قسم (کلاهما) د تثنیه لپاره راځي، لکه (کلاهما او کلتاهما) او پاته نور د غیر تثنیه لپاره د ضمېر په بدلون سره راځي، لکه (کله، کلها او کلهم او کلهن) او په نورو کي صرف د صیغو په بدلون سره، لکه چي ووایې: (اجمع او جمعاء او اجمعون او جُمَعُ).

**تشریح:** وروركیه! نن عبارت لږغوندي طوېل دی، لېکن ته مه خفه کېږه، خبري پکي صرف څلور دي:

①: د تاکید لغوي او اصطلاحي تعرېف، ②: په تعرېف کي د قیدونو فائدې، ③: د تاکېد اقسام، ④: د تاکېد الفاظ او تفصېل یې.

### د تاکېد لغوي او اصطلاحي تعرېف

**لومړۍ خبره:** د تاکېد لغوي او اصطلاحي تعرېف:

تاکېد: د اکّد یؤکّد تاکیدًا تفعیل د باب مصدر دی، لغوي معنا یې ده: التقریر والاثبات یعني د یو شی مضبوط او پخول، پخوونکي ته مؤکِد او کوم شی چي پوخ سوی وي، هغه ته مؤکَد ویل کېږي.

او اصطلاحي تعرېف یې پخپله مصنف رحمة الله علیه بیان کړی، چي (التاکید تابعٌ یقرر امرالمتبوع فی النسبة اوالشمول) یعني تاکید هغه تابع دی، کوم چي د متبوع حال د سامع په مخکي مضبوطوي په نسبت کي یا په شمول کې، د دې لپاره چي د اورېدونکي کوم شک پاته نسي، تفصېل یې په دې ډول دی: چي د متبوع طرفته چي کوم شی منسوب وي، د سامع په نزد په هغه کي د مجاز، یا سهو، یا نسیان (هېري) احتمال وي، نو د تاکېد په راوړلو هغه احتمال لیري کړل سي، لکه

چي يو څوک ووايې: (جاءنی زيدٌ) په دې کي دا احتمال و، چي کېدای سي د متکلم هېر سوي وي، يا سهوه سوی وي، زيد نه وي راغلی، بلکي کوم بل څوک راغلی وي، لېکن کله چي ورسره تاکېد ولګېدی، داسي وويل سول (جاءنی زيدٌ زيدٌ)، نو داسي احتمالات ختم سوه او د مخاطب په مخکي دا خبره پخه سوه، چي د راتګ نسبت د زيد وطرفته حقيقي دی، مجازي نه دی، همدا مطلب دی د نسبت او د شمول مطلب دادی چي تاکيد دا ښيي چي د کوم حکم نسبت د دغه متبوع وطرفته سوی دی، هغه حکم د دغه متبوع ټولو افرادو ته شامل دی، لکه (جاءنی القوم کلهم) په دې کي لومړی شک کېدی چي پوره قوم به نه وي راغلی، لېکن د کلهم تاکېد دا وښودل چي د راتګ حکم پوره قوم ته شامل دی.

دوهمه خبره: په تعرېف کي د قيدونو فائدې:

التاکيد تابعٌ يقررامر المتبوع فی النسبة اوالشمول: په دې کي التاکيد معرف او تابعٌ تر اخيره پوري يې تعرېف دی، په دې کي تابع جنس دی، کوم چي ټولو توابعو ته شامل دی.

**يقرر امر المتبوع**: دا لومړی فصل دی ددې په ذريعه عطف بالحرف او بدل خارج سو، ځکه هغه دواړه د متبوع حالت مضبوطوي او پخوي.

**فی النسبة**: دا دوهم فصل دی ددې په ذريعه صفت او عطف بيان هم ووت ځکه دا دواړه که څه هم متبوع ثابت او مقرر وي، لېکن د (فيما نسب الی المتبوع) تقرېر نه کوي، بلکي د متبوع د ذات تعيين او وضاحت کوي.

اوالشمول: دا درېيم فصل دی دا صرف ددې لپاره راوړل سوی، چي د تاکېد دوهم قسم ته هم دا تعرېف شامل سي.

## د تاکېد قسمونه

**درېيمه خبره**: د تاکېد قسمونه:

وهو لفظی ومعنوي: چي د مؤکد په اعتبار تاکېد پر دوه قسمه دی: تاکېد لفظي او تاکېد معنوي.

فاللفظي تكرير اللفظ الأول يعني تاكيد لفظي هغه تابع دى كوم چي د اول لفظ په مكرر راوړلو حاصلېږي، لكه: جاءنى زيدٌ زيدٌ.

**د تاكيد لفظي حكم:**

و يجرى فى الألفاظ كلها: يعنى تاكيد لفظي په هر قسم الفاظو كي جاري كېږي، محشي صاحب د غاية التحقيق په حواله ددې لويه جامع تشريح كړې ده: (اى فى الاسماء والأفعال والحروف والجُمل والمركبات التقييدية وغيرها) يعني په تاكيد لفظي كي لفظ مكرر وي او په هر لفظ كي جاري كېږي، هغه لفظ كه حرف وي، لكه: (انّ انّ زيدًا قائمٌ)، يا فعل وي، لكه (ضرب ضرب زيدٌ) يا اسم وي، لكه (ضرب زيدٌ زيدٌ) يا پوره جمله وي، لكه (زيدٌ قائمٌ زيدٌ قائمٌ) او د الله ﷻ په قول كي هم راغلى دى: (كلا سوف تعلمون ثم كلا سوف تعلمون) او يو ځاى وايي: (وما ادراك ما يوم الدين ثم ما ادراك ما يوم الدين).

## د تاكيد معنوي حكم

**والمعنوى** بألفاظ محصورة: تاكيد معنوي په كوم شى حاصلېږي او په كومو شيانو كي جاري كېږي ددې په هكله وايي: چي هغه په څو ځانګړيو الفاظو سره دى: (نفسه، عينه، كلاهما، كله، اجمع، اكتع، ابتع، ابصع).

## د تاكيد د الفاظو تفصيل

**څلورمه خبره:** د الفاظ تاكيد تفصيل:

مذكوره الفاظ له تاكيد څخه لومړى د لومړيو دوو (نفسٌ او عينٌ) په هكله وايي: چي (فالأولان يعمان باختلاف صيغهما وضميرهما) يعني لومړى دوه عام دي، د مفرد، تثنيه، جمع، تذكير او تانيث ټولو لپاره استعمالېږي، او د هريوه لپاره د دوى صيغي او ضمائر بدلېږي، مثلا د واحد مذكر لپاره ويل كېږي: جاءنى زيدنفسه او عينه) او د واحده مؤنثه لپاره ويل كېږي: (جاءتنى هند نفسها او عينها)

او دتثنيه مذکر او مؤنث لپاره ويل کيږي (جاءني زيد وعمرو انفسهما او اعينهما او جاءتني هند وفاطمة انفسهما او اعينهما)

**يادونه:** دلته په تثنيه کي مصنف رحمه الله د (نفسٌ او عينٌ) دجمع صيغي په (انفس اواعين) سره ذکر کړي دي، ځکه چي تثنيه له جمع سره ملحق ده، کوم حکم چي ملحق به ته ورکول کيږي، هماغه ده ته هم ورکول کيږي، يا ځکه چي دا هم جمع دي او د جمع اقل تعداد هم دوه وي، لکه چي يل کيږي: (الاثنان فما فوقهما جماعة) پر دې سربيره ځيني عرب حضرات دا داسي استعمالوي: (جاءني زيدٌ وعمروٌ نفساهما وعيناهما) يعني د تثنيه په صيغو سره، په دې صورت کي هيڅ سوال نه پاتيږي، لېکن صاحب حاشيه ويلي دي: چي لومړی صورت زيات اولیٰ دی.

او دجمع مذکر لپاره ويل کيږي: جاءنی زيد وعمرو وبکر انفسهم واعينهم او د جمع مؤنث لپاره ويل کيږي: جاءتني هند وفاطمة وعائشة انفسهنّ واعينهنّ.

والثانی للمثنیٰ: مصنف رحمه الله د تاکيد دالفاظو دري برخې وښودلې، په لومړۍ برخه کي دوه الفاظ و، چي تفصيل يې تېر سو، اوس دوهمه برخه (يعني د کلاهما او ددې مؤنث کلتاهما) په هکله وايې: چي دا دتثنيه لپاره استعماليږي، لکه: ماجاءني الرجلان کلاهما او جاءتني المرأتان کلتاهما.

والباقی لغير المثنیٰ: له مذکوره دريو پرته چي کومې پنځه پاته دي دهغو په هکله وايې: چي دا له تثنيه پرته دبل چا يعني د مفرد او جمع لپاره دي، هغه که مذکر وي، يا مؤنث، د ټولو لپاره استعماليږي، لېکن فرق يې دا دی، چي (باختلاف الضمير فی کله) يعني له هغو پنځو څخه چي کو لفظ (کُلُّ) دی په هغه کي د مؤکد په اعتبار سره صرف په ضمير کي تبديلي راځي، باقي صيغه هماغه پاتيږي، لکه د واحد مذکر مثال (اشتريت العبد کلّه) او دواحده مؤنثه مثال (اشتريتُ الجارية کلّها) او د تثنيه لپاره خو وښودل سوه، چي نه راځي، د جمع مذکر مثال (جاءنی القوم کلّهم) او دجمع مؤنث مثال: (جاءتنی النساء کلّهنّ).

والصیغ فی البواقي: پاتې سوه ځلور (اجمع، اکتع، ابتع، ابتع)، ددې په هکله وایې: چې په دې کې د مؤکد په اعتبار سره په صیغو کې تبدیلي کیږي او د دوی په ضمیر کې هیڅ بدلون نه کیږي، په متن کې ددوی ټولو صرف یو یو مثال لیکل سوی دی (اجمع، جمعاء، اجمعون او جُمع) لیکن صاحب حاشیه د ټولو مثالونه په پوره وضاحت لیکلي د ي، هلته یې وګورئ.

**دواحد مذکر مثال:** اشتریت العبدَ کلّه اجمع، اکتع، ابتع، ابصع.

**د واحده مؤنثه مثال:** اشتریت الجاریةَ کلّها، جمعاء، کتعاء، بتعاء، بصعاء.

**د جمع مذکر مثال:** جاءنی القومُ کلّهم اجمعون، اکتعون، ابتعون، ابصعون.

**او د جمع مؤنث مثال:** جاءتنی النسوةُ کلُّهنَّ جُمع، کُتع، بُتع، بُصع.

## یو سل او پنځم (۱۰۵) درس

## د تاکید له الفاظو سره تړلې څو اهمې قاعدې

و لایؤکد بکل واجمع الا ذو اجزاء یصح افتراقها حسًّا جاء زیدٌ کلُّه واذا اُکّدالضمیر المرفوع المتصل بالنفس والعین اُکّد بمنفصل مثل ضربتَ انت نفسَک واکتع واخواه اتباعٌ لِاَجمع، فلا یتقدّم علیه وذکرها دونه ضعیفٌ.

**ترجمه:** او په کل او اجمع سره تاکید نه کیږي، خو دداسې اجزاء لرونکې، د کوم چې افتراق (بېلول) حسًا یا حکمًا صحیح وي، لکه (اکرمت ا لقوم کلّهم او اشتریت العبدَ کلّه) په خلاف د (جاء زیدٌ کلّه) او کله چې تاکید وسي د ضمیر مرفوع متصل په (نفسٌ ا و عینٌ) سره، نو ددغه ضمیر متصل تاکید په منفصل سره کیږي، لکه (ضربتَ انتَ نفسکَ) او (اکتع) او دده دواړه هم مثله (ابتع او ابصع) دواړه د (اجمع) تابع دي، نو دوی پر (اجمع) نسي مخکې کېدای او له (اجمع) پرته ددوی ذکر کول هم ضعیف دي.

تشریح: ورورکیه! د نن په سبقه کې د تاکید له الفاظو سره تړلې درې اهمې قاعدې ذکر کیږي:

**لومړۍ قاعده:** د کلّ او اجمع متعلق:

و لايوكد بكل واجمع الا ذواجزاء يصح افتراقها حسًّا اوحكمًا: چي د تاكيد له الفاظو څخه د كل او اجمع په ذريعه صرف د هغه شی تاكيد كيږي، كوم چي په حسي، يا حكمي توګه تقسيم قبلولای سي، د حسي مثال (اكرمت القوم كلّهم اجمعين) وګوره قوم تقسيم كيدای سي او افراد يې جلا جلا كيدای سي، مثلا د زيد بېل اكرام كول، د بكر بېل اودعمرو بېل، له همدې وجې يې په كل سره دده تاكيد بيان كړی، او دحكمي مثال (اشتريت العبدَ كلّه) دلته دمرييي اجزاء مثلا لاس وغيره تقسيم كيدای خو نسي، ليكن د مرييي حكمي تقسيم كيدای سي، هغه دا راز چي د مرييي نيمه حصه خرڅه سي او نيمه يې له تاسو سره وي، يا يې نيمه برخه اوس خرڅه كړې او نيمه يې وروسته، نو دا راز ممكن دي، له همدې وجې يې وويل چي (اشتريت العبد كله اجمع).

بخلاف جاء زيدٌ كلّه: مصنف رحمه الله وايي: چي د مذكوره قاعدې پر بنا جاء زيدٌ كله ويل صحيح نه دي، ځكه چي زيد نه حسي تقسيم قبلوي او نه هم تقسيم حكمي.

**دوهمه قاعده**: له نفسْ او عينْ سره متعلق:

وا ذا اكد الضمير المرفوع المتصل بالنفس والعين اكّد بمتصل: د تاكيد له الفاظو څخه چي كله دنفس اوعينْ په ذريعه د ضمير مرفوع متصل تاكيد وسي، نو ضروري ده چي لومړی دده تاكيد په ضمير منفصل سره وسي، لكه (ضربتَ انتَ نفسک)، دلته د (نفسک) په ذريعه په (ضربت) كي د (تاء) ضمير مرفوع متصل تاكيد سوی دی، ځكه يې نو ترده مخكي د ضمير مرفوع منفصل په ذريعه دده تاكيد كړی دی.

د مذكوره شرط وجه داده چي د (نفسٌ او عينٌ) لفظ اكثره فاعل واقع كيږي، لكه (زيدٌ ضرب نفسُهُ) يعني زيد دده ذات وواهه او (عمرٌو جاء عينُه) عمرو دده ذات راغی، نو كه چيري له ضمير منفصل پرته صرف د نفسٌ او عينْ په ذريعه دده تاكيد وسي، نو په ځيني صورتونو كي د تاكيد له فاعل سره التباس لازميږي، لكه چي په (زيدٌ ضربنی نفسُه) كي نه معلوميږي، چي نفسه دضربنی فاعل دی، يا

دده دضمیر فاعل تاکید دی، داراز په (په زیدٌ اکرمنی نفسه) کې هم دا خرابي لازمیږي، لیکن که چیري دده تاکید په ضمیرمنفصل سره وسي، مثلا (زیدٌ ضربنی هو نفسُه او زیدٌ اکرمنی هو نفسُه) نو اوس پکي فاعل اوتاکید بلکل صفا معلومیږي، چي هو ضمیر د ضرب او اکرم فاعل او نفسه ددغه ضمیر فاعل تاکید دی او ځیني مثالونه که څه هم داسي دي چیري چي التباس نه لازمیږي، لکه په ضربت انت نفسُک کي، لیکن په هغه کي هم طردًا للباب داسي کیږي.

په مذکوره قاعده کي د قیدونو فائدې:

و اذا أُكد الضمير المرفوع المتصل بالنفس والعين اكد بمنفصل:

①: لومړی په دې کي ضمیر ذکر سوی دی، نو د ضمیر پر ځای که چیري داسم ظاهر تاکید وسي، نو په ضمیر منفصل سره یې تاکیدکول ضروري نه دی، لکه: جاء زیدٌ کلّه.

②: ضمیر یې په المرفوع سره مقید کړی دی، نو که د ضمیر مرفوع پر ځای ضمیر منصوب، یا مجرور وي، نو د هغه لپاره هم دا حکم نه دی، لکه: ضربتکَ نفسک او مررت بک نفسک.

③: د تاکید له الفاظو څخه یې صرف نفسٌ او عینٌ ذکر کړل، نو که چیري په کوم بل لفظ سره تاکید وسي، نو هم یې دا حکم نه دی، لکه: جاءنی القوم کلهم اجمعون اکتعون، په دې ټولو کي مذکوره حکم ځکه نه جاري کیږي، چي په داسي ځایونو کي دفاعل له تاکید سره التباس نه لازمیږي، نو کله چي لازم رانغی، نو ملزوم هم نه پاتیږي.

**درېیمه قاعده**: د اکتع د اخواتو متعلق:

واخواه اتباع لأجمع، فلا تتقدم عليه، وذكرها دونه ضعيف:

اکتع او ددې دواړه اخوات، یعني ابتع او ابصع دا ټول د اجمع تابع دي، نو دا درې سره تر اجمع مخکي کیدای نسي، که نه د تابع پر متبوع مخکي کیدل لازمیږي او

له اجمع پرته د دغو دریو سره ذکر کول هم ضعیف دي، ځکه په دې صورت کې له متبوع پرته صرف د تابع ذکر لازمیږي.

**فائده:** علامه زمخشري رحمه الله علیه او دده له اتباعو څخه د کافیه د ملاصاحب مذهب دا دی لکه څرنګه چې اکتع او دده اخوات پر اجمع نسي مخکې کېدای، دا راز ابتع او ابصع دواړه پر اکتع نسي مخکې کېدای او دا راز ابصع پر ابتع نسي مخکې کېدای، لکه چې همداسې ویل کېږي: جاء القوم کلهم اجمعون واکتعون وابتعون وابصعون.

او د بغدادیه او جزولي په نزد هم فقط همدا ترتیب لازم دی، چې ابصع پر اکتع مخکې کول جائز دي او علامه ابن کیسان رحمه الله علیه ویلي دي: چې اکتع او ددې اخوات پر اجمع خو نسي مخکېدای، لیکن پخپله په دوی کې ترتیب لازمي نه دی، بلکې کوم چې غواړي مخکې کولای یې سي.

## یوسل او شپږم (۱۰۶) درس

## د څلورم تابع (بدل) بیان

البدل: تابعٌ مقصودٌ بما نُسب الی المتبوع دُونه وهو بدل الکل والبعض والاشتمال والغلط، فالأول: مدلوله مدلول الأول، والثانی جزؤه، والثالث بینه وبین الأول ملابسةٌ بغیرهما والرابع: ان تقصد الیه بعد ان غلطتَ بغیره ویکونان معرفتین ونکرتین ومختلفین واذا کان نکرةً من معرفةٍ فالنعت مثل: (بالناصیة ، ناصیة کاذبة) ویکونان ظاهرین ومضمرین ومختلفین، ولایبدل ظاهرٌ من مضمر بدل الکل الا من الغائب نحو: ضربته زیدًا.

**ترجمه:** بدل هغه تابع دی، چې په یو داسې شی سره مقصود وي، د کوم چې نسبت د متبوع وطرفته سوی وي، نه چې پخپله متبوع او هغه بدل الکل دی او بدل البعض دی او بدل الاشتمال دی او بدل الغلط، بیا لومړی هغه دی چې مدلول یې د لومړي والا مدلول وي او دوهم هغه کوم چې د لومړي جزء وي او دریم هغه

دی، چې دده او دده د متبوع تر مينځ يو قسم تړاو (تعلق) وي چې له (مذكوره) دواړو څخه غير وي او څلورم هغه دی چې ته غلط سي، بېرته يې وطرفته را وګرزي او داد واړه معرفه كېږي او دواړه نكره كېږي او مختلف هم كېږي او كله چې بدل نكره وي له معرفه څخه نو له بدل سره صفت راوړل ضروري دي، لكه (بالناصية، ناصية كاذبة) او دواړه اسم ظاهر كېږي او دواړه ضمېرونه كېږي او دواړه مختلف كېږي او بدل نسی جوړېدای د بدل الكل په ډول اسم ظاهر له اسم ضمېر څخه مګر له ضمېر غائب څخه، لكه: (ضربته زيدًا).

**تشريح:** د نن په سبقه كي څلور خبرې دي وروركيه!

①: دبدل لغوي او اصطلاحي تعرېف، ②: په تعرېف كي د قيدونو فائدې، ③: د بدل قسمونه، ④: له بدل او مبدل منه سره تړلې ضروري مسئلې.

### دبدل لغوي اواصطلاحي تعريف

**لومړۍ خبره:** د بدل لغوي او اصطلاحي تعرېف:

له توابعو څخه څلورم تابع بدل دی ددې لغوي معنا ده عوض او مقابل او دده متبوع ته مبدل منه ويل كېږي.

او اصطلاحي تعرېف يې پخپله مصنف رحمه الله كړی دی، چې (البدل تابعٌ مقصودٌ بمانسب الى المتبوع دونه) يعني بدل هغه تابع دی، دكوم حكم نسبت چې د متبوع وطرفته سوی وي، د همدې حكم نسبت د تابع وطرفته هم سوی، لېكن مقصود بالنسبة صرف همدا تابع وي، نه چې متبوع، لكه (جاءنی زيدٌ اخوک) دلته زيد مبدل منه دی او اخوک يې بدل دی او د زيد طرفته چې د كوم راتګ نسبت سوی دی، هماغه د تابع (اخوک) وطرفته هم سوی او مقصود دهمدغه (اخوک) وطرفته نسبت كول دي، د (زيد) لفظ صرف د تمهيد لپاره راوړل سوی دی.

**دوهمه خبره:** په تعرېف كي د قيدونو فائدې:

البدل تابعٌ مقصودٌ بما نسب الى المتبوع دونه: په دې عبارت كي البدل معرف دی او تابعٌ تر اخيره پوري يې تعرېف دی، په تعرېف كي تابعٌ د جنس په درجه كي دی، كوم چې ټولو توابعو ته شامل دی.

مقصود بالنسبة الى المتبوع: دا لومړی فصل دی په ذريعه يې عطف بيان، تاكيد او صفت ووتل، ځکه په دې ټولو کي مقصود بالنسبة متبوع دی، نه چي تابع.
دونه: دا دوهم فصل دی په ذريعه يې عطف بالحرف ووت، ځکه په هغه کي مقصود بالنسبة تابع او متبوع دواړه وي.

## د بدل قسمونه

**درېيمه خبره**: د بدل قسمونه:

وهو بدل الكل والبعض والاشتمال والغلط: د كافيه ملاصاحب رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ د بدل څلور قسمونه را ښيي، ①: بدل الكل، ②: بدل البعض، ③: بدل الاشتمال، ④: بدل الغلط، بيا پسې د هريوه تعريف راته كوي:

### الأول بدل الكل:

**فالأول**: مدلوله مدلول الأول: يعني بدل الكل هغه تابع دی، چي دده او د مبدل منه مدلول يو وي، لکه: (جاءنی زيدٌ اخوک) په دې کي زيدٌ مبدل منه دی او اخوک ځيني بدل دی او دواړه پريوه شی يعني د زيد پرذات دلالت كوي.

### الثانی: بدل البعض:

**الثانی**: جزءه: د كافيه د ملاصاحب رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ كمال او د الفاظ له خپلې خزانې څخه يې د الفاظو په خرڅولو کي احتياط ته وګورئ، چي په دې لنډو ټکو کي د بدل البعض تعريف كوي، وايې: چي بدل البعض هغه تابع دی، چي مدلول يې د مبدل منه د مدلول يو جزء او برخه وي، لکه: (ضُرب زيدٌ رأسُه) وهل سوی دی زيد يعني دده سر، په دې کي زيد مبدل منه او رأسه يې بدل دی او د پوره زيد يو جزء او برخه ده.

### الثالث بدل الاشتمال:

**الثالث**: بينه وبين الأول ملابسة بغيرهما: يعني بدل الاشتمال هغه تابع دی، چي دده او دده د مبدل منه ترمينځ د لومړيو دوو قسمونو له تعلق پرته كوم چي د كليت او بعضيت تعلق وو كوم بل تعلق وي، لکه: (سُلِبَ زيدٌ ثوبُه) وګوره! جامه نه خو د زيد كل ده او نه يې جزء بلكي له دې پرته يو بل خارجي تعلق له زيد سره لري، چي د كليت او بعضيت ترمينځ دی، دا راز د اللهُ جَلَّ جَلَالُهُ قول دی:

(یسئلونک عن الشهرالحرام قتال فیه) په دې کي (الشهر الحرام) موصوف سره صفت مبدل منه دی او (قتال فیه) یې بدل دی او (قتال) نه خو د (الشهرالحرام) کل دی او نه یې جزء بلکي له کلیت او بعضیت پرته یو خارجي تعلق ورسره لري، چي د کلیت او بعضیت تر مینځ دی او هغه تعلق د ظرف او مظروف دی.

**الرابع بدل الغلط:**

**الرابع**: ان تقصد الیه بعد ان غلطت بغیره: یعني بدل الغلط هغه تابع دی، چي د مبدل منه تر غلط ذکر کېدو وروسته دده قصد وسي، لکه: مررت برجل حمارٍ، دلته متکلم (مررت بحمار) وایه، خو د غلطۍ او ژبې ته د مخکي راتلو له وجې یې تر خوله رجل ووتل، بیا یې سمدستي (حمارٍ) وویل، د هغې غلطۍ اصلاح یې وکړه.

**فائده**: د بدل الغلط په تعریف کولو مصنف رحمه الله علیه (ان تقصد الیه بعد ان غلطت بغیره) وویل او ددې پر ځای یې (بعد ان غلطت بالمبدل یا بالمتبوع) ونه ویل، دایې دې خبرې ته اشاره وکړه، چي لومړنی اسم ددوهم اسم لپاره په حقیقت کي هېڅ متبوع نه دی، بلکي ژبې ته د را مخکي کېدو له وجې تکلم په وسو او کوم عامل چي پر وروستني اسم داخلېدی، هغه پر لومړني اسم داخل سو.

**له بدل او مبدل منه سره تړلې ضروري مسئلې**

**څلورمه خبره** له بدل او مبدل منه سره تړلې ضروري مسئلې:

**لومړۍ قاعده**: د بدل او مبدل منه معرفه، یا نکره کېدل:

ویکونان معرفتین ونکرتین ومختلفین: په دې عبارت کي مصنف رحمه الله علیه د بدل او مبدل منه د تعریف او تنکیر په اعتبار سره یوه قاعده بیانوي، چي د بدل او مبدل منه دواړوه لپاره هېڅ مطابقت شرط نه دی، بلکي دواړه معرفه هم کېدای سي، لکه (ضرب زیدٌ اخوک) او دواړه معرفه هم کېدای سي، لکه (جاءنی رجل غلامُ لزیدٍ) او یو له بل سره مخالف او مغائر هم کېدای سي، چي لومړی معرفه او دوهم نکره وي، لکه (بالناصیة، ناصیة کاذبة خاطئة)، یا لومړی نکره او دوهم معرفه وي، لکه (جاءنی رجل غلام زید).

**فائده:** د تقریر کافیه مصنف لیکلي دي او محشي صاحب په حاشیه کي هم لیکلي دي، چي د تعریف او تنکیر په اعتبار سره بدل کل شپاړس (۱۶) قسمه جوړیږي، لکه مذکوره څلور قسمونه دي، دا څلور قسمونه دبدل په څلورو قسمونو کي جاري کیږي، نو څلورو ته چي په څلورو کي ضرب ورکړل سي، نو شپاړس صورتونه جوړیږي، د ټولو مثالونه ملاحظه کړئ.

| **د بدل الکل مثالونه:** |
|---|
| چي بدل او مبدل منه دواړه معرفه وي، لکه: جاءنی زیدٌ اخوک. |
| چي بدل او مبدل منه دواړه نکره وي، لکه: جاءنی رجلٌ غلامٌ لزید. |
| بدل نکره او مبدل منه معرفه وي، لکه: جاءنی زیدٌ غلامٌ له. |
| بدل معرفه او مبدل منه نکره وي، لکه: جاءنی رجلٌ غلام زید. |
| د بدل البعض مثالونه: |
| چي بدل او مبدل منه دواړه معرفه وي، لکه: سُلب زید رأسه. |
| چي بدل او مبدل منه دواړه نکره وي، لکه: سُلب رجلٌ رأس له. |
| بدل نکره او مبدل منه معرفه وي، لکه: سُلب زیدٌ رأس له. |
| بدل معرفه او مبدل منه نکره وي، لکه: سُلب رجلٌ رأسه. |
| د بدل الاشتمال مثالونه: |
| بدل او مبدل منه دواړه معرفه وي، لکه: اعجبنی زیدٌ علمه. |
| بدل او مبدل منه دواړه نکره وي، لکه: اعجبنی رجلٌ رأسٌ له. |
| بدل نکره او مبدل منه معرفه وي، لکه: اعجبنی زیدٌ علمٌ له. |
| بدل معرفه او مبدل منه نکره وي، لکه: اعجبنی رجلٌ علمه. |

| د بدل الغلط مثالونه: |
|---|
| بدل او مبدل منه دواړه معرفه وي، لکه: جاءنی زيدٌ الحمار. |
| بدل او مبدل منه دواړه نکره وي، لکه: جاءنی رجلٌ حمارٌ له. |
| بدل نکره او مبدل منه معرفه وي، لکه: جاءنی زيدٌ حمارٌ له. |
| بدل معرفه او مبدل منه نکره وي، لکه: جاءنی رجلٌ حمارٌ له. |

**فائده ②**: د بدل الکل دوهم مثال په کوم کي چي بدل او مبدل منه دواړه نکره وي، نو په هغه کي چي پر (غلام) کوم تنوين راغلی دی، غلام يې له کبله نکره دی، تاسو داسي ونه فهموئ، چي د زيد وطرفته د اضافت په وجه غلام معرفه کېږي، ځکه پر زيدٌ لام هم داخل سوی دی، ځکه دلته اضافت نسته (کمافی تقرير الکافيه ج: ۱، ص: ۲۶۲).

**دوهمه قاعده**: د نکره له معرفه څخه بدل واقع کېدل:

و اذا کان نکرة من معرفة فالنعت: معلومېږي چي د کافيه ملا صاحب علامه ابن حاجب رحمه الله د کافيه د ليکلو په وخت کي د مرګ زنګونه محسوسول، له همدې وجې يې بلکل په ادل، بدل الفاظو کي تعريفات، مسائل او قواعد وغيره ښودلې دي، ددې لپاره چي کوم شی پاته نسي، نو دلته هم يوه اهمه مسئله په مختصرو الفاظو کي بيانوي، چي که چېري کوم اسم نکره له اسم معرفه څخه بدل واقع سوی و، نو په اسم نکره کي د څه ناڅه تخصېص پيداکېدو لپاره صفت راوړل ضروري دي، ځکه چي مقصود بالنسبة دلته بدل وي او د مقصودي شی درجه د غير مقصودي شی په مقابل کي اعلیٰ کېدل پکار دي او دلته مبدل منه په معرفه کېدو سره اعلیٰ ده او بدل په نکره کېدو سره ادنیٰ دی، له همدې وجې يې ورسره صفت راوړ، چي تخصېص پيداسي، ددې لپاره چي د نکارت په وجه د ادنیٰ او انقص کېدو څه ناڅه حصه زائل سي، لکه: (لنسفعًا بالناصية ناصية کذبة خاطئة) يعني موږ به هرومرو ابوجهل ونيسو په تندي سره، نو سوال پيداکېدی چي کوم تندی؟، نو ويې ويل: چي (ناصية کاذبة خاطئة) يعني هغه کوم عام تندی نه دی، بلکي دروغجن او خطاوي کوونکی تندی دی، هغه رانيسو.

درېيمه قاعده: دبدل او مبدل منه داسم ظاهر او اسم ضمير په صورت راتلل:

و یکونان ظاهرین ومضمرین ومختلفین: په دې عبارت کې مصنف رحمه الله د بدل اومبدل منه د اسم ظاهر او اسم ضمیر په اعتبار سره یوه قاعده بیانوي، چې د دې لپاره هم کوم شرط نشته، بلکې دواړه اسم ضمیر هم راتلای سي، لکه: (زید ضربته ایاه) او یو له بله مغائر هم کېدای سي، چې لومړی اسم ظاهر وي او دوهم اسم ضمیر وي، یا د دې پر عکس وي، لکه: (زید ضربته اخاک).

**فائده**: لکه څرنګه چې په لومړۍ قاعده کې شپاړس صورتونه جوړېدل، بلکل همداسي دلته هم شپاړس صورتونه جوړېږي، کوم مثالونه چې د اصل کتاب په حاشیه کې لیکل سوي دي، هلته یې وګورئ.

**څلورمه قاعده**: د اسم ظاهر له اسم ضمیر څخه بدل الکل جوړېدل:

و لا یُبدل ظاهرٌ من مضمر بدل الکل الا من الغائب: **یعني** اسم ظاهر له ضمیر متکلم او ضمیر مخاطب څخه بدل الکل نسي جوړېدای، بلکې صرف د غائب له ضمیر څخه جوړېدای سي، لکه (ضربته زیدًا).

د دې وجه داده چې د متکلم او مخاطب ضمیرونه اعرف المعارف وي او مقصود بالنسبة بدل وي، نو که چېرې د متکلم یا مخاطب له ضمیر څخه اسم ظاهر بدل سي، نو د اعلیٰ ادنیٰ او د ادنیٰ اعلیٰ کېدل لازمېږي او د غائب له ضمیر څخه دا بدل جوړېدای سي، چې هغه که څه هم معرفه دی، لېکن د کمې درجې معرفه دی، له همدې وجې مذکوره خرابي په هغه کې نه لازمېږي.

## یو سل اووم (۱۰۷) درس

## د پنځم تابع (عطف بیان) بیان

عطف البیان: تابعٌ غیر صفة یوضح متبوعه مثل: اقسم بالله ابو حفص عمر، وفصله من البدل لفظًا فی مثل: انا ابن التارک البکریّ بشر.

**ترجمه**: عطف بیان هغه تابع دی، چې له صفت څخه غیر وي او د خپل متبوع وضاحت کوي، لکه (اقسم بالله ابو حفص عمر) یعني د الله جل جلاله په نامه قسم! ابو حفص یعني عمر رضی الله عنه او جلاوالی دده له بدل څخه په لفظي توګه وي په داسي مثالونو کې (اناابن التارک البکری بشر) یعني زه د ابن التارک بکری بشر زوی یم.

**تشریح**: ورورکیه! د نن په اخیري سبقه کي درې خبرې دي:

①: د عطف بیان تعریف، ②: په تعریف کي د قیدونو فائدې، ③: د بدل او عطف بیان ترمېنځ فرق.

## دعطف بیان تعریف

**لومړۍ خبره**: د عطف بیان تعریف:

عطف البیان تابعٌ غیر صفة یوضح متبوعه: په دې عبارت کي د کافیه ملاصاحب رحمه الله د عطف بیان تعریف بیانوي، چي عطف بیان هغه تابع دی، کوم چي صفت نه وي او د خپل متبوع وضاحت کوي، لکه: (اقسم بالله ابو حفص عمر) په دې کي (ابو حفص) متبوع دی او (عمر) یې تابع دی، یعني عطف بیان دی، ځکه (ابوحفص) کوم چي د عمر رضي الله عنه کنیه نوم دی، دا نا واضح دی، نو د عمر په راوړلو سره واضح سو.

**د شعر دورود محل**:

یو صحرایي عمر رضي الله عنه ته راغی، ویې ویل: امیرالمؤمنین! زما کور ډېر لیري دی او اوښ کوم چي له ما سره دي، هغه کمزوری دی او نس یې ژوبل دی او په پښو کي یې سوریان پیداسوي دي، نو ته ماته یو ښه اوښ راکړه، څرنګه چي عمر رضي الله عنه عالم الغیب خو نه و، نو ګمان یې وکړ، چي کېدای سي دی دورغ وایې، نو یې د اوښ له ورکړې څخه انکار وکړ، اعرابي (صحرایي) چي دا واورېدل، نو له خپل ناروغ اوښ سره روان سو او دا شعریې وایه ع:

اقسم بالله ابو حفص عمر

ما مسّها من نقبٍ ولادَبَـــــرِ

اغفر له اللّهمّ ان کان فـــجر

**ترجمه**: ابوحفص یعني عمر رضي الله عنه په الله جل جلاله قسم وخوړ، چي نه خو دده په اوښ کي کوم سوری پیداسوی او نه یې نس ژوبل دی، نو ای الله جل جلاله! که چېري عمر رضي الله عنه په دروغو قسم خوړلی وی، نو ده ته بخښنه وکړې.

د الله جل جلاله شان او قدرت ته وګورئ! چې عمر رضي الله عنه پر لاره مخامخ را روان و، دا حالت يې ليدى او دا اشعار يې واورېدل، نو ويې ويل: اى الله جل جلاله! د دې صحرايي وينا رشتيا کړې، بيا يې صحرايي ترلاس ونېو، ورته ويې ويل: له خپل اوښ څخه دي سامان را کښته کړه، هغه سامان را کښته، عمر رضي الله عنه وليدل، چې هغه اوښ رشتيا ناروغ و، نو خپل اوښ او دلارې څورى او څه جامې وغيره يې ورکړل او رخصت يې کړ (كما فى تهذيب الكافيه ص: ۲۱۳).

**لطيفه (خوږه کيسه)**: يوه طالب العلم ته چا وويل: چې وښييه! پير بابا رحمه الله لوى دى، که دا مخامخ غر؟، طالب العلم چې دا واورېدل نو په فکر کې سو، چې څه ځواب ورکړم؟، که ووايم چې پير بابا لوى دى، نو غر خو دومره لوى دى، چې ګواکې له اسمان سره د نياز وراز خبرې کوي، نو دا جواب خو صحيح نه دى، او که چېرې ووايم چې غر لوى دى، نو د پير بابا درجه کښته کېږي، نو دا جواب هم صحيح نه دى، په اخير کې يې تر څه فکر کولو وروسته ساده پاده جواب ورکړ، ويې ويل: وروره! الله جل جلاله دې تا داسې حيران کړي، لکه زه چې دې حيران کړم.

نو خوږو طالبانو! نن تاسو ته هم همداسې معامله راغلې ده، هغه دا چې تېر کال تاسو په هداية النحو کې د عطف بيان په تعريف کې ويلې وه، چې (و هو اشهر اسمى شئ) يعني عطف بيان د يو شى په دوو نومونو کې په مشهورترين نامه سره کول او ددې په مقابله کې به تاسو په راتلونکي کال کې په شرح جامي کې وواياست، چې (وليس بلازم فى عطف البيان ان يكون اوضح من متبوعه...فيمكن ان يكون الأول (المتبوع) اوضح من الثانى) يعني د عطف بيان لپاره دا څه لازمي نه دي، چې هغه دې تر خپل متبوع زيات واضح وي، بلکې لازمي صرف دادي چې هغه وضاحت کوم چې په تابع او متبوع کې په يوه يوه سره نه حاصلېږي، هغه ددواړو په يو ځاى کېدو سره حاصلېږي او په دې کې دا هم عين ممکن دي، چې لومړنى يعني متبوع زيات واضح وي تر خپل تابع يعني عطف بيان.

نو تر مينځ موږ او تاسو حضرات په حيرانۍ کې واقع سو، نو موږ د کافيه له ملاصاحب رحمه الله څخه غواړو، چې جناب! موږ په دې مشکل کې لوېدلي يو، ته موږ ته را وښييه چې موږ کومه خبره ومنو؟ که د هداية النحو خبره ومنو، نو د

جامي ملاصاحب رحمه الله ناراضه کېږي او که دده خبره ومنو، نو د هداية النحو ملاصاحب رحمه الله ناراضه کېږي، نو د کافيه ملاصاحب رحمه الله هم د پورتنی لطيفې د طالب العلم په څېر د عطف بيان ساده پاده تعريف وکړ، چي (تابعٌ غير صفة يوضح متبوعه)، له دواړو تعريفونو يې ځان خلاص کړ، لېکن د انصاف خبره داده چي د شرح جامي د ملاصاحب رحمه الله خبره صحيح سي.

**دوهمه خبره:** په تعريف کي د قيدونو فائدې:

عطف البيان تابعٌ غير صفة يوضح متبوعه: په دې عبارت کي (عطف البيان) معرّف دی او (تابعٌ) تر اخيره پوري يې تعريف دی، بيا په تعريف کي (تابعٌ) د جنس په درجه کي دی، کوم چي ټولو توابعو ته شامل دی او (غير صفة) لومړی فصل دی، په ذرېعه يې صفت وزي، (يوضح متبوعه) دوهم فصل دی، په ذرېعه يې نور توابع وزي.

### د بدل او عطف بيان ترمينځ فرق

**درېيمه خبره:** د بدل او عطف بيان ترمينځ فرق:

وفصله من البدل لفظًا: په دې عبارت کي د کافيه ملاصاحب رحمه الله د نحو پر هغو علماؤ رد کول غواړي، کوم چي وايې: توابع ټول څلور دي، هغه داسي چي عطف بيان کوم مستقل قسم نه دی، بلکي په بدل کي شامل دی، نو د کافيه ملاصاحب رحمه الله پر دوی په رد کولو سره وويل: چي عطف بيان او بدل دواړه يو شی نه دي، بلکي د دواړو ترمينځ باقاعده په لفظي او معنوي دواړه ډوله فرق سته، معنوي فرق خو يې مشهور و، چي په بدل او مبدل منه کي مقصود بالنسبة بدل دی او مبدل منه صرف د تمهېد او توطيه لپاره راځي او په عطف بيان کي مقصود بالنسبة دده متبوع وي او تابع صرف د وضاحت لپاره وي، له همدې وجې دده ذکر نه کېږي.

البته لفظي فرق يې بيان کړی، چي د (انا ابن التارک البکری بشر) په څېر مثالونو کي د عطف بيان او بدل ترمينځ لوی فرق سته، چي (بشر) د (البکری) لپاره عطف بيان سي، هيڅ خرابي نه لازمېږي، لېکن که همدا (بشر) له (البکری)

څخه بدل سي، نو خرابي لازمېږي، ځکه بدل د عامل د تکرار په حکم کي وي، نو ګواکي چي دلته د (بشر) په شروع کي (التارک) لګول صحیح دي، نو بیا عبارت داسي کېږي: (انا ابن التارک البکری التارک بشر) او دا ناجائز دی، ځکه دا بعینه د (الضارب زید) په څېر کېږي او مخکي موړدي وضاحت کړی دی، چي دا ناجائز دی، ځکه په (الضارب زید) کي د اضافت په وجه سره هېڅ تخفیف نه راځي، بلکي له (الضارب) څخه چي کوم تنوین لیري سوی هغه د الف د داخلېدو له وجې لیري سوی دی او دلته په (التارک بشر) کي هم همداسي کېږي، ځکه یې نو بدل جوړېدل صحیح نه دي، بلکي دا عطف بیان جوړېږي او عطف بیان د عامل د تکرار تقاضا نه کوي، نو عبارت صرف داسي کېږي: (انا ابن التارک البکری بشر) او داسي عبارت صحیح دي.

**فائده ①**: د کافیه ملاصاحب رحمة الله علیه (فی مثل انا ابن التارک البکری بشر) وويل، خو له (مثل) څخه یې مراد هر هغه ترکیب دی، په کوم کي چي د عطف بیان متبوع داسي معرف باللام وي، د کوم طرفته چي د صیغه صفت اضافت سوی وي، په داسي حال کي چي هغه صیغه د صفت هم معرف باللام وي، لکه په مذکوره شعر (انا ابن التارک البکری بشر) کي، وګوره! د (بشر) متبوع (البکری) معرف باللام دی او دده اضافت سوی د ی د (التارک) صیغه صفت وطرفته کوم چي معرف باللام دی.

**فائده ②**: مذکوره شعر د المراري الأسدی نومي شاعر دی، پوره شعر داسي دی:

انا ابن التارک البکری بشر* علیه الطیر ترقبه وقوعا

**ترجمه**: زه د هغه سړي زوی یم، کوم چي د بکري بشر په څېر زړور او پهلوان سړی په ډګر کي وواژه، په داسي حال کي یې پرېښود، چي مرغانو دده د مړینې انتظار کاوه او په داسي حال کي چي مرغان په هواکي موجود وه.

**ترکیب**:

انا ابن التارک البکری بشر

عليه الطير ترقبه وقـــــوعا

(انا) ضمير د متكلم مبتداء، (ابن) مضاف، (التارک) د ماقبل لپاره مضاف اليه او د مابعد لپاره مضاف (البكرى) معطوف عليه، (بشر) عطف بيان، معطوف عليه سره له خپل عطف بيانه مضاف اليه لفظًا او مفعول به اول د (التارک) صيغه صفت لپاره، (على) جار، (ها) ضمير مجرور، جار سره له خپل مجروره ظرف مستقر متعلق تر (كائنة) پوري، (كائنة) صيغه داسم فاعل (هى) ضمير ذوالحال، (الطير) مبتداء مؤخر، (ترقب) فعل (هى) ضمير ذوالحال، (ه) ضمير مفعول به، (وقوعا) دواقعة جمع دى دا حال سو، ذوالحال سره له خپل حال فاعل سو د (ترقب) لپاره، (ترقب) فعل سره له خپل فاعل اومفعول به جمله فعليه خبريه خبر مقدم دى د (الطير) مبتداء مؤخر لپاره، مبتداء مؤخر سره له خبر مقدم جمله اسميه خبريه مفعول ثاني د (التارک) صيغهِ صفت لپاره، (التارک) صيغه صفت سره له خپلو دواړو مفعولونو مضاف اليه د (ابن) مضاف لپاره، (ابن) مضاف سره له خپل مضاف اليه خبر د (انا) ضمير مبتداء لپاره، مبتداء سره له خپل خبره جمله اسميه خبره سوه.

والله تعالى اعلم بالصواب وعلمه اتم واكمل (وَ مَا أُوْتِيْتُمْ مِنَ الْعِلْمِ اِلَّا قَلِيْلًا) رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا اِنَّکَ اَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمِ وَ تُبْ عَلَيْنَا اِنَّکَ اَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِيْم.

وَ صَلَّى اللهُ تَعَالٰى عَلَى النَّبِيِّ الْاُمِّيِّ وَ عَلٰى آلِهِ وَ اَصْحَابِهِ وَ اَتْبَاعِهِ وَ اُمَّتِهِ اَجْمَعِيْنَ اِلٰى يَوْمِ الدِّيْنِ بِرَحْمَتِکَ يَآ اَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ

سيد عبدالرشيد بن مقصود هاشمي

عفى الله عنه وعافاه

استاذ مدرسه عربيه تجويدالقرآن قيوم آباد كراچي

(۳ شوال المكرّم سنه: ۱۴۳۰هـــ د شروع ورځ)

Scanned by CamScanner